Scanned with CamScanner

# دکتاب پیژندنه

نوم ---------------- دموزو مسئلې

مؤلف ------------- **مولانا رفعت قاسمي**

پښتوژباړه ------------------ عبدالله ګل (ريان)

دترجمی او کمپوز چاري --- دنورالقرآن اداري دترجمې او کمپوز څانګه

کمپوزر ---------------------- عبدالله (عزام)

تصحيح او سمون -------- ابوخالد مولوی عبدالاحد

خپرونکی -------- مکتبه رشيديه سرکی روډ کويټه

چاپ ځای ---------------------------لاهور

شمير ---------------------------- ۱۵۰۰

چاپونکی ----- محمدساجد-موبائل- 03337825484

**ضروري يا دونه**

يواځې لوی خدای ﷻ هغه ذات دی چې .
ټول کارونه يې په پوره معنی بشپړ او
مکمل دي خوانسان هغه ناقص او بې توانه
موجود دی چې هيڅ يو کار يې هم بې
نمګړتيا نه وي.
ګرانو لوستونکو ! که تاسو ته دليکنې .
تصحيح . چاپ . جلد سازي او دا رنګه په
هره برخه کې کومه غلطي په نظر درغله
دمهربانی او بشري تقاضا له مخې يې موږ
ته زموږ په نمبر يا ادرس خبر راکړی. ترڅو
په دوهم چاپ کښې يې اصلاح کړو. او تاسو
ته لوی خدای ﷻ اجر او ثواب درکړي.

د مکتبه رشيديه سرکي روډ کوئټه لخوا
فون: 081-266223
موبائيل: 0333-7825484



فهرس — مخ



Scanned with CamScanner

فهرس (ب) مخ



فهرس (ج) مخ



Scanned with CamScanner

دفهرس پاي

اللهم اعنا علی ذکرک وشکرک وحسن عبادتک واجعلنا من المسلمین ومن الذین لاخوف علیهم ولاهم یحزنون



## دلیکوال خبري

الحمدلله رب العالمین والصلاة والسلام علی رسوله محمدﷺ وعلی اله وصحبه واهل بیته اجمعین.

الحمدلله یوولسم کتاب ( مکمل ومدلل مسائل خفین ) ستاسو په وړاندي دي په هغه کښي په موزو باندی دمسح کولو دلائل ، دمسح کولو حکمت ، دمسح تعریف ، دموزو ډولونه ، په کومو موزو دمسح کولو اجازه ده ، په سفر اوحضر کښي دمسح موده اواحکامو ، عامی موزی ، په پگړۍ دعمامه ) ،برقعه اوپه سړو سیمو کښی دمسح کولو مسایل ، دمسح شرطونه ، دمسح فرضونه ، سنتونه اومستحبات اودمسح دباطل کیدلو صورتونه اونور راغلي دي .

په پلستر دمسح کولو دلایل ، دمسح دصحیحوالی شرطونه ، غتبي دانی ، وړی دانی ، غوځ شوی ای ، زخم ، پټۍ ، دهډوکو ماتیدل اوبیا پلستر کول اوپه نورځایونودمسح کولو مسائل ، لنډه داچی په دي کتاب کښي نژدي دري سوه مسئلی راغلی دي . موږ سره له دي چي په خپله کم عملی ، بی بضاعتي اوکم پوهیدلو اقرار کوو اودمسئلو معامله هم دقیقه ده ، روژی پوهي ته اړتیا لیدله کیږی اودلته علمی مسطح اومعلومات هم محدود دي خو دالله ﷻ په توکل اوتکیي دلویو مفتیانو دویناوو په یوځای کولو چي له کتابونو څخه یي په خورا احتیاط اوډیر فکر سره دموضوع متعلق ( مفتي به اقوال ) یوځای شوی دي بیا هم دغلطی اوتیروتنی احتمال نه ردوو ، نو له اهل علم جنابانو څخه هیله ده چي که یي څه تیروتنه تر نظر ورغله دااحقر دی خبر کړی ترڅو یي په راتلونکی کي اصلاح کړو .

یا الله ! یوازی په خپل فضل اوکرم داسعی او زیار بریالی کړی اودبیا لپاره دخدمت توفیق راکړی ، امین ربنا تقبل منا انک انت السمیع العلیم محمد رفعت قاسمي غفرله ، ددیوبند ددارالعلوم ( یو ،پي انډیا)

دتدریس خادم

د ۱۴۱۵ ه ق کال دمحرم الحرام لومړی نیټه دجون ۱۲ کال ۱۹۹۴ یکشنبه )

Scanned with CamScanner

**دجامع شریعت اوطریقت ، فقیه الامت ددیوبند ددارالعلوم دستر مفتی ،سیدي حضرت مولانا مفتی محمود حسن صاحب دامت برکاته چشتي ، قادري ، سېر وردي ، نقشبندي .**

## تصدیق

الحمد لله وحده ، والصلوة والسلام علی من لانبي بعده ، اما بعد !

ددارالعلوم مدرس محترم مولانا محمدرفعت قاسمي صاحب ، دپخوانیو تالیفاتو په څیر ترسترګو لاندی کتاب ( مسائل خفین مع جبیره ) کښې یې په اړوند موضوع کښې دفتاوا وولهٔ مختلفو کتابونو څخه مسائل راټول کړی دي ، په امت یې احسان کړی دي . په اختلافی مسائلو کښې یې غوره قول ( قول راجح ) او وربانډی فتوا شوی خبره رااخستي ده . الله تعالی شانه دي دخیر جزاء ورکړی او خواص اوعوامو ته دي له دي کتاب څخه دستري ګټې اخستلو توفیق ورکړی . مؤلف دی الله ﷻ ددارینو په ترقیو ونازوي ، الله ﷻ دي ورته دنجات ذریعه کړی اوالله ﷻ دی ورته په راتلونکی کښې دخدمت نوره موقع ورکړی . آمین

العبد محمود غفرله : دچهته مسجد هستوګني ددیوبند دارالعلوم ۱۴۱۵ ه ددیوبند



دمفتی حضرت مولانا مفتي نظام الدین صاحب دامت برکاته

## ارشاد عالی

بالله سبحانه !

الحمد لله رب العالمین والصلوة والسلام علی رسوله محمد وعلی اله وصحبه اجمعین ، وبعد !

ددي کتاب خورا ته دټول کتلو فرصت ونه موندل شو خو فهرست مي په خورا غور سره وکوت ، لهٔعنوانونو څخه په غالب اټکل راته اندازه ولګیدله چي خورا اهم اوعمده مضمونونه لري ، خواص اوعوامو ته بې کچي ګټور کتاب دي .

الله دي داکتاب هم په قبلولو سره ونازوي چي خواص ، عوامو اوټولو ته بې ګټور ثابت کړی ، آمین ثم آمین ، فقط

کتبه العبد نظام الدین

ددیوبند ددارالعلوم مفتی

۱۴۱۵\۶\۲۲ هج ۱۹۹۴\۱۱\۲۸ م

## دحضرت مولانا مفتی محمد ظفیر الدین صاحب ددیوبند دفتاوی مرتب او دارالعلوم مفتي .

### دقدر وړ نظر

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله وكفى وسلام على عباده الذين اصطفى .

موزی په سړو هیوادونو کښې په عامه ډول پښو کیږی له هغوی څخه دپښو خوندی توب مقصد دي ، مقیم ته دیوي ورځي اومسافر ته دردریو ورځو وړباندی دمسح کولو اجازه شته ، همداشان که زخمیانو په ټپونو باندی پټي تړلی وي اوداودس کولو اوبو ورته زیان رساوو وړباندی دمسح اجازه شته .

اړتیا داده چي داټولی مسئلي یوځای اوپه کتابی توګه خپري شوی وای ترڅو خلګو ته دموزو او زخمونو دمسح کولو ټول مسائل په یوه کتاب کي راغلی وای .

الله ﷻ دي مولانا قاري محمدرفعت قاسمی صاحب ، ددیوبند ددارالعلوم مدرس ته نیک اجر ورکړی چي په دي مسئلو کښي یي هم دنورو په کتابونو په خیر له مستندو کتابو څخه په راټولولو کی هڅه کړیده او الله تعالی دي بریالی کړی دي .

داکتاب په همداسي ټولو مسئلو مشتمل دي ، او الحمدلله مسئلی له حوالو سره لیکلی شوی دي ، رښتیاهم چي داقیمتي ذخیره راورسیدله موږ یي له ډیرو کتابونو څخه بي نیازه کړو ، الله ﷻ دي قبول کړی اومؤلف ته دي ددواړو جهانونو خوښ وړیه برخه کړی ، آمین

دعا غوښتونکی . محمد ظفیر الدین ددیوبند ددارالعلوم مفتی دجمادي الآخر ۱۴۱۵هج ۱۹۹۴



## دفقیه النفس حضرت مولانا مفتي سعیداحمد صاحب مدظله العالی پالن پوري ددیوبند ددارالعلوم دستر محدث .

### تقریظ

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله وكفى وسلام على عباده الذين اصطفى ، اما بعد !

ددیوبند دارالعلوم ، وفاضل ، جناب مولانا محمد رفعت قاسمی صاحب ، بریالی دي چي الله تعالی دهغه دقلم له برکت څخه ډیر کتابونه راڅرګند کړی دي ، له هغوی څخه امت ته خورا زیاته ګټه اوبرکت رسیدلی دي ، کتابونه یي خورا منلی او مقبول دي ، دهغه په پرله پسي هڅو کښي داده نوي کتاب دمشاهدي په ډګر کښي وځلید ، دهغه نوم دي ( مکمل ومدلل مسائل خفين ) هغه یوازی مکمل اومدلل نه بلکه ( مفصل اومدهن ) هم دي .

دعاده چي الله ﷻ دي داکتاب هم دنورو په څیر په عامه اذهانو کښي مقبول وګرځوي اومؤلف ته دي ددارینو جزیل اجر ورکړی ( آمین ) .

په موزو باندی مسح ډیره باریکه خبره ده خو دجورابو مسئله مغلقه ده زمونږ په هیواد کښي چي دتارونو یا نیلون جورابی رواج دي هغوی نري دي ، دمسح شرائط وړباندی پوره نه دي ، په هغوی باندي په اتفاقي ډول مسح کول جواز نلري .

نن سبا ، بیباکه ځوانان په تیره عرب زلمی په هغوی مسح کوي دا خورا ستره غلطی ده ، دهغوی اودس نه کیږي اولمونځ یي هم صحیح نه دي په همداسي چا پسي لمونځ کول هم سم نه دي .

خو که همداجورابي مجلدی کړی یعنی په تلی او سربېرنه برخه څرمن ورکړی بیا دموزو حکم لري اومسح وربانـدی سمه ده ، که یوازی یی تلیو تـه څرمن ورکړی بیا هم وربانـدی مسح نه صحیح کیږي ، مولانا مفتی محمد شفیع دیوبندی صاحب په خپله رساله (نیل المارب فی المسح علی الجوارب) کښي لیکي .

(درقیـق منعـل په اړه دحنفی مذهب په پخوانیو کتابونو کښي په منصومي توګه کوم حکم موجود نه دي ، خو دکلام له دلالت څخه څر ګندیږي چي په رقیق منعل باندي مسح جواز نلری (فتاوی دارالعلوم قدیم ، ص ۳۸ ج ۱،۳) .

زموږ په هیواد کښي دارواج هم شته چي په معمولی جورابو باندی دڅرمني پیچني (پای تابی) راتاووي ، هغه لکه سلیم شاهي جوړي داسي ښکاري، داپایتابی (پیچني) دجورابو دخوندی ساتلو لپاره وربانـدی وپیچی ، داپایتابی له جورابو څخه بیلی وي ، څیني یي ورسره یوځای کوی خوبیا هم وربانـدی مسح نه کیږي ، هغه مجلدی نه دي ، دمجلدکیدلو لپاره کافی داده چي دټولی پښي په اندازه (تر بیـلړیو) باید څرمن ورکړي شي ، که یوازی په تلی څرمن ورکړل شی هغه دمنعل کیدلو اصل صورت دي . که پایتابی ورکړی هم منعـل دي ، مفتی شفیع صاحب په دي هکله په خپله رسالـه کښي ښه وضاحت لري .

په دي کتاب کښي په دي مسئله په تفصیل خبره شوی ده خوداچي ډامسئله مهمه ده مادامناسبه وګڼله چي دکتاب دتفصیل ، لنډیز په خپله الفاظوکښي راوړم ترڅو دلوستونکو په ذهن کښي داحکم ښه ځای ونیسي په پای کښي بیا دعا کوم اودالله ﷻ فضل ته مي هیله ده چي داکتاب مقبول وګرځوي ، خلګ ورڅخه فیض اوبرکت واخلی اومصنف (دام مجده) ته دخیر جزاء ورکړی ، والسلام

کتبه سعید احمد عفا الله عنه پالن پوری
دیوبند ددارالعلوم خادم
۲۲ رجب ۱۴۱۵ هج ۲۶ دسمبر ۱۹۹۴



بسم الله الرحمن الرحيم

عن المغيرة قال مسح رسول الله ﷺ على الخفين فقلت يارسول الله ﷺ نسيت قال بل انت نسيت بهذا امر ربي عزوجل ( رواه احمد وابوداود)

## په موزو باندي دمسح ثبوت

**مسئله** : په موزو باندی دمسح کولو جواز په ډیرو حدیثونو باندي ثابت دي نژدي اتیاتنه سترو صحابه ؤ رضی الله عنهم بیان کړي دي چي رسول الله ﷺ مسح کړي ، اجازه یي ورکړي ، دمسلمانانو په اجماع اوتواترثابت ده ، که څوک تري انکار کوي هغه داهل سنت والجماعت له ډلي څخه وتلي دي ( طهور المسلمین ص ۳۴ فتاوی دارالعلوم ص ۲۷۴ ج ۱ ددرمختار په حواله دتفصیل لپاره وګوري : نصب الرایه ص ۱۹۴ ج ۱ معارف السنن شرح ترمذی ص ۳۴۸ ج ۱ ، کتاب الفقه ص ۲۱۹ ج ۱ ) .

**مسئله** : په موزو مسح کول له حدیث څخه ثابت دي ، ثبوت یي له (سنت مشهوره ) څخه دي اوپه موزو باندی دمسح کولو راویان تراتیا تنو زیات صحابه دي په هغوی کښي عشره مبشره هم شامل دي (فتاوی دارالعلوم ص ۲۷۴ ج ۱ ، درمختار ص ۲۴۵ ج ۱ ) .

## مسح په موزو باندي روا ده

**مسئله** : چاچي دڅرمني موزی په پښو کړی وي ، اودس ې کړي اوپښي یي ریولي وي دبیا اودس کولو په وخت کښي وربانـدی دموزو ایستل اوپښي ریول فرض نه دي هغه ته جائز دي چي داودس کولو په وخت دپښو دمینځلو ه ځای وربانـدی مسح وکړي . (مظاهر حق ، ص ۴۶۲ ج ۱)

**مسئله** : که دبل چا په موزو څوک مسح وکړي صحيح ده خو نيت به يي
دموزي دمسح وي ( رکن دين ، ص ۲۷ دعالمگيري په حواله )

## آيا په موزو مسح کول دقرآن دآيت خلاف ده ؟

په موزو باندي مسح کول په ډيرو حديثونو چي دتواتر حد ته رسيږي ثابت دي
داستذکار په نوم کتاب کی دموزو دمسح په هکله نژدي له څلويښتو صحابهٔ
څخه احاديث رانقل کړی دي ·
حسن بصري ( رحمه الله ) وايي چي اويـاتنو صحابه وو راتـه بيـان کړي دی چی
رسول الله ﷺ په موزو باندي مسح کړی ده ·
هغه صحيح حديث چي راغلی دي دجرير بن عبدالله الجبلی (رض) روايت دي
کوم چي امامانو له اعمش (رض) څخه روايت کړی دي ، هغه لـه ابراهيم (رض)
هغه له همام (رض) اوهغه له جرير (رض)څخه روايت کړی دي ، وايي ·
جرير (رض) بولي وکړي ، اودس يي وکړ اوپه خپلو موزو يـي مسح وکړه ، کلـه
چي خلګو ورته وويل ( تاسي داسي مسح وکړه ؟ ) ·
لومړی وويـل : هو ! مـا رسـول الله ﷺ وليـد ، بـولي يـي وکـړي ، اودس يـي وکـړ
اوپه موزو يي مسح وکړه )·
امام زيلعی رحمه الله ددي حديث يا دونه په خپل کتـاب (نصب الرايـه ) کښـي
کړی ده وايي داحديث محدثينو ته خورا منلي ډي ، خکه جرير (رض) دمانـدی
دسورت تر نزول وروسته مسلمان شوی دي ، دمانده سور° هغـه سور° دي چي
، په هغه کښي په اوبو باندی داودس کولو حکم شوي دي ( يا ايها الذين آمنوا اذا
قمتم الی الصلوة فاغسلوا وجوهکم وايديکم الی المرافق (مانده :شپږمه پاره ) .
په دي ايت کښي په صراحت سره ددواړو پښو پريمنځل ښودل شوی دي خو په
کثرت سره احاديث ددي حکم خلاف دي اوداحاديث ددي ايت ترنزول وروسته



ويل شوی دی ، نـو داامر ورڅخـه معلوميږي چي الله تعـالی دپښـو مينځـل پـه
هغه صورت کښي فرض کړی دی چي موزي په پښو نه وي ، کـه پـه پښـو موزی
وي مينځل يي فرض نه دی ، دمينځلو په ځای په موزو مسح کيږي .
په داډول حديثونو کښي يو هم هغه دي چي په بخاری کښي له مغيره بن شعبه
رضی الله عنه څخـه روايت شوي دی ( رسـول الله ﷺ دحاجت درفـع کولـو لپـاره
بهر ووت مغيـره (رض) دځرمنـي پـه يـوه لـوښي کښـي اوبـه واخسـتلی اوتـر شـا
ورپسـي لاړ ، رسـول الله ﷺ چي دحاجت لـه رفـع کولـو څخـه فـارغ شـو ، مغيـره
(رض) اوبه اچولی ، رسول الله ﷺ اودس وکړ اوپه موزو يي مسح وکړه .
امام بخاری رحمه الله يوبـل حديث هـم لـه مغيـره (رض ) څخـه روايت کـړی دي
چي وايي :
لاره په يوه سفر کښي له رسول الله ﷺ سره ملګری وم ، ماوغوښتـل درسـول الله
ﷺ موزی يي له پښو څخه ليري کړم ، رسول الله ﷺ راتـه وويـل : ( هغـوی پريږده
ماپښي مينځلي وي ( اودس مـي کـړی وو) او دوی مـي پـه پښـو کـړي وي ) بيـا
رسول الله ﷺ ورباندی مسح وکړه ، همداسي نور احاديث هم شته چي بخـاری ،
مسلم او نورو راويانو روايت کړي دي . ( کتاب الفقه ص ۲۲۰ ج ۱ ) .

## دمشتبه موزو حکم

:موزو دپه پښو کيدلو په صورت کښي داثابته ده چي مسـح وربانـدي کـافي ده
وس داحکم له موزو څخه جرابو ته هم رسيدلی دي : وايي جرابی دمـوزو حکـم
ري ، خو خبره دلتـه ده چي جرابـي دمـوزو حکـم لـري کنـه ؟ پـه جرابـو کښـي
موزو شرائط تحقق مومی کنه ؟
لما ٔ دکليی قاعدی په اساس چي وايي ( اليقين لايزول بشك) دپښو اصلی فريضـه
ينځل دي ،داشتباهي شي لـه پاره نـه پرينښودل کيږي ، دهمدی احتيـاط لـه
له امام مالک اوامام شافعی رحمه الله دثخين ( پنډو) جرابو لپاره هم مجلد

کيدل شرط بللی دی منعل ( يوازی تلی ته خرمن ورکول ) کافی نه ده ، دامام اعظم رحمه الله په مذهب کښي په يوه روايت کښي راخي چي ثخين ( دومره پنډي جرابي چي اوبه تري نهٔ تيريږي ) به هم بشپړی خرمن لری که تربيډيو پوري خرمن نه وه مسح ورباندي جايز ده. ( امدادالمفتين ص ۲۰۷ بهشتي زيور ص ۷۱ ج ۱ ).

## په موزو باندي دمسح حقيقت

( مسح علي الخفين ) په عربی ژبه کښي (خف ) دموزي په معني دي دتثني لپاره يي د( خفين ) لفظ دي نوداسي ويل کيږي چي پرته له عذره په يوه موزه مسح جائزه نه ده موزه له دي امله دخف په لفظ ياديږي چي خفت يعني سپکوالي او سهولت دي څکه دمينځلو په اعتبار مسح سهل اواسانه ده ، الله تعالی ته معلومه ده چي په موزه کښي سهولت دي اودرسول الله ﷺ په ژبه اعلان شوی ده . داسي هم ده چي په موزو باندی دمسح کولو سهولت يوازی دمحمدي امت ځانګړتيا ده . ( درمختار ص ۳۲ ج۳)

## دشريعت په اصطلاح موزه څه شي ته ويل کيږي ؟

په شريعت کښي خف ( موزه ) هغه شي ته ويل کيږي چي دڅرمني په څير له څ شي څخه جوړه شوی وي ، تر بيډيوي پښي پوښلي وي ، له پښو سره لګيدلي وي اواوبه نه تري تيريږي . ( معارف السنن ص ۳۲۱ ج ا ) دخف ترجمه عام موزه نه ده ( فيض الباري ص ۳۰۲ ج ۱ ).

## په موزو باندي دمسح تعريف

په لغت کښي مسح ( په يوه شي لاس تيرول ) که څوک په څه شي لاس ووه ويل کيږي ( مسح عليه ) يعني هغه په فلانی شي مسح وکړه .
دشريعت په اصطلاح له مسح څخه مقصد لوندوالی رسول دي ، دلته ل لمدوالي څخه مقصد په موزو په ځانګړي طريقه سره ده چي بيا به بيان شي پ



اصل کښي په موزو باندي مسح کول يوجائز امر دي يعني شارع ( ع) سرو اوميرمنو ته اجازه ورکړی ده چي په سفر اوحضرکښي په موزو مسح کولای شي داحکم يورخصت دي چي شارع ( ع ) مکلفو اشخاصو ته رواکړی دي .
درخصت معنی سهولت (اساني) ده خوپه شريعت کښي هغه امر دي چي ديوه شرعي دليل په خلاف يي بل دليل هم وي او دلومړي په مقابل کښي ثابت وي .
خو د(رخصت ) په مقابل کښي د(عزيمت ) لفظ دي هغه دادي چي په يوه داسي دليل ثبوت وي چي مقابل دليل ونلري .
په موزو باندي مسح ، کله کله واجب ده ، صورت يي دادی چي که دموزو په ايستلو اودپښو په مينځلو کښي دلمانځه دقضا کيدلو انديښنه وه په دي حال کښي فرض ده چي ( په اودس کولو کښي ) دپښو دمينځلو په ځای په موزو مسح وکړی .
يا مثلا ( وقوف عرفه ) دحج په موقع په عرفات ددريدلو په فريضه کښي که دوخت دتيريدلو ويره وه نو لازمه ده چي په موزو مسح وشي اوپښي ونه مينځل شي .
يا دومره اوبه وي چي پښي ورباندي نه مينځلی کيږي نو لازمه ده چي په موزو باندي مسح وکړي .
له داسي ځايونو هاخوا په موزو باندي مسح کول يو رخصت يا جايز امر دي اودپښو مينځل تر مسح غوره ده . ( کتاب الفقه ص ۲۱۷،۲۱۸ ج ۱ )

## په موزو باندی په مسح کولو درسول الله ﷺ عمل

په دي هکله دسفر السعادت ليکوا ل ليکي :
( درسول الله ﷺ عمل له تکلف څخه خالی وو يعنی په دوو کښي يي ديوه امر خاص اهتمام نه کاوو که به يي موزي په پښو وي دپښو دمينځلو لپاره يي

Scanned with CamScanner

موزى نه ايستلي كه به يي موزى په پښو نه وي نو يوازى دمسح كولو لپاره يي موزي نه په پښو كولى .

غوره خبره دامعلوميږي چي دنبوي سنت ( اتباع) وشي يعني دموزو دمسح په هكله هغه له ( تكلف څخه خالى ) صورت باندي عمل وشي كوم چي رسول الله ﷺ كاوو . ( مظاهر حق ص ۴۶۳ ج ۱)

**مسئله** :رسول الله ﷺ دخرمني په موزو مسح كوله ( فتاوى دارالعلوم ص ۲۶۹ ج ۱ ) .

## په موزو باندى دمسح كولو په هكله دامام اعظم رحمه الله قول

**مسئله** : په اودس كولو كښي په موزو مسح كول رخصت يعنى په اساني عمل كول دي خو په موزو باندي دمسح كولو په ځاى دپښو مينځل عزيمت يعنى غوره ده .

داودس كولو په وخت كښي موزي ايستل اوپښي مينځل ( په تيره په ساړه موسم كښي ) مشقت دي ، له همدي امله شارع (ع) يوازى په خپل امت باندي مهرباني نه بلكه ستر احسان اوانعام كړى دي ، كه دمحمدي امت څوك له دي احسان څخه انكار كوي نو ترهغه به بل څوك ناشكره اوبي قدره وي .

په هدايه كښي ليكي څوك چي په موزو باندي دمسح كولو قائل نه دي هغه ( بدعتي ) دي كه څوك ورباندي قائل دى اوپه عزيمت ( اولى اوافضل ) باندى دعمل په نيت په موزو مسح نه كوي اوپښي مينځي ثواب يي ورته رسيږي امام اعظم رحمه الله فرمايي : زه ترهغه وخته په موزو باندى دمسح قائل نه وم ترڅو چي دورځي په څير روښانه احاديث راته څرگند نه وو . ( مظاهر حق ، ص ۴۶۲ ج ۱ اودرمختار ص ۳۵ ج ۱ ) .



## له مسح څخه دمنكر حكم

امام اعظم رحمه الله ته خلگو عرض وكړ چي داهل سنت والجماعت علامه څه ده ؟

امام صاحب وويل : ابوبكر اوعمر رضى الله عنهما ترټولو صحابه وو غوره گڼل ، له عثمان اوعلى (رض) سره مينه لرل اوپه موزو باندى مسح كول جائز بلل ، په موزو باندي دمسح كولو منكر له اهل سنت والجماعة څخه وتلى دي ( طهور المسلمين ص ۳۴ ) .

## په موزو باندى دمسح په سراوراز

داچي په اودس كولو كښي دهغو غړو مينځل دي چي ښكاره دي اوژر ، ژر ورباندى گرز اودوړي كښيني ، دموزو په پښو كولو پښي پټيږي .

په عربانو كښي دموزوپه پښو كول عام عادت وو ، دهر لمانځه په وخت كښي هغو ى ايستل اوپښي مينځل تكليف وو ، نودهغوى دپه پښو كولو په حال كښي مينځل ورڅخه ساقط شول اوامريي وكړ چي په موزو دپاسه مسح كوئ ترڅو مو دپښو مينځل ياد وي ، مسح دپښو دمينځلو يوه نمونه ده اوبل مقصد پكښي نشته ( اسرار شريعت ص ۷۹ ج ۱ ) .

## دموزو دلاندى خوادمسح نه كولو وجه

كه دموزو په لاندينى برخه دمسح كولو جواز واي ، ډير حرج به وو ، ځكه بيا ورباندي گرځيدل ددي باعث وو چي ورباندي خاوري كښيني يعني ژر ناولي شي ( اسرار شريعت ص۸۰ ج ۱ ) .

## په شریعت کښي نفس ازاد پریښودل شوی نه دی

په شریعت کښي چي تیسر ( اساني ) راغلی ده هلته په عبادت کښي دمطلوب
شي په ترک کولو کښي نفس ازاد پریښودل شوی نه دی ، له همدي امله شارع
( ع ) دموزو دمسح په هکله هم دري خبري ټاکلي دي :

اول : دمسح موده : دمقیم لپاره یوه ورځ اوشپه اودمسافر لپاره دري ورځي
اوشپي ، داهغه موده ده چي انتظام اوالتزام یي کیدلای شي دالتزام همداموده
دتکلیف په کچ دمقیم اومسافر په حال سمه معلومه شوي ده .

دوهم : شارع ( ع ) داشرط ایښي دي چي موزي به دپاکي په حالت کی په پښو
کیږي چي دپښو کیدلو په وخت کښي یي دپاکي خیال وي او دگرز او دوړو اثر
پکښي کم وي اوداپاکي په هغي پاکي قیاس کړی ، همدا سي پرتله کول په
نفس باندي خورا مثبت اغیز لري .

دریم : دریم حکم یي داکړي دي چي په موزو دپاسه دي مسح کوي ، ترڅو
دپښو مینځل یا د ته راشي اودایي نمونه شي .

علي رضی الله عنه وایي ( که په دین کښي دعقل دخل وای نو په موزو باندي
تر پاسني برخه کښتني برخه مناسب وه ) .

زه وایم داچي مسح دمینځلو یوه نمونه ده اوپکښي له همدي پرته بل مقصود
نشته او که دلاندی وورباندي مسح کیږي په لاره یي دناولتیا اټکل غالب دي
، نو دعقل غوښتنه داده چي له پاسه ورباندي مسح وشي .

علي ( رض ) دشریعت په اسرارو خورا پوه شخص وو ، دادهغه دخبرو اوخطبو
څخه ښکاره ده خوله دي خبري یي موخه داده چي خلگ په دین کښي مداخله
ونکړي ،داسي نه شي چي عوام الناس خپل دین ته زیان ورسوي .
( حجة الله البالغه ص ۲۸۰ ج ۱ اسرار شریعت ص ۸۰ ج ۱ ) .



## په موزو باندي په مسح کولو کښي عقل دخل نلري

علي (رض ) وایي : که په دین کښي دعقل دخل وایي نو دمسح لپاره دموزو تر
برني برخی لاندیني برخه وړ وه ، خو مارسول الله ﷺ ولید چي په خپلو موزو یي
په پورتني برخه مسح وکړه (ابو داؤد)

**تشریح** : ( وړ وه ) یعني دموزي لاندیني برخه ( تلی ) ناولی وي نو عقلا
خوداغوره ښکاري چي په هغي برخه مسح وشي ځکه هغه باید پاکه شي ، خو
په شریعت کښي عقل څه دخل نه لري ؟ عام عقل خولاڅه کوي خاص اوبشپړ
عقل به دشریعت تابع وي هوښیار اوعاقل سړی به په هرصورت دشریعت
متابعت کوي .

کفار ، ملحدین اواهل هوا چي لار ورکي دي ، دگمراهی سبب یي دادي چي
دعقل متابعت کوي اودعقل دغوراوي ښکار کیږي ( مظاهر حق ص ۴۶۸ ج ۱ ) .

**مسئله** :دموزی تلی ( لاندینی برخه ) چي له ځمکي سره لگیږي مسح
ورباندي جائزه نه ده (کتاب الفقه ص ۲۲۶ ج ۱ ) .

## په موزو باندي دمیرمنو مسح کول

**مسئله** : په موزو باندی مسح کول ، دسړی ، میرمني او خنثی(نرښځی) ټولو
لپاره جائزه ده ( درمختار ص ۴۱ ج ۱ ) .

**مسئله** : په موزو باندی دمسح کولو دجواز اسباب ددواړو ( سړی اومیرمنو
لپاره یوډول دي . (عالمگیري ص ۷۰ ج ۱)

Scanned with CamScanner

**مسئله** : دحائضي اوجنب لپاره په موزو مسح کول جواز نلري يعنی په چا چي غسل واجب وي که هغه دحيض ، نفاس له ناولتياوي اوکه له جنابت څخه په موزو مسح ورته جواز نلري ځکه دټول بدن مينځل ورباندی فرض دي ، خو په مسح کولو همدا فرض نه پوره کيږي ( درمختار ص ۳۶ ج ۱ ) .

**مسئله** : په چا چي غسل کول فرض وي اويا هغه چي اودس وکړي اوموزي په پښو کړي خو وروسته غسل ورباندي فرض شي دهغه لپاره په موزو مسح کول جواز نلري .

**مسئله** : که چا اودس وکړ موزی يي په پښو کړي ، جنابت ورته ورسيده . دومره اوبه يي درلودي چي اودس يي کولای شوای خو غسل ورباندي نه کيده اودس دي وکړي په موزو دي مسح نه کوي پښي دي ومينځي اودجنابت له پاره دي دغسل په نيت تيمم وکړي. ( درمختار ص ۳۷ ج۱ طهور المسلمين ص ۳۷ ) .

## په موزو دمسح کوونکي امامت

**مسئله** : رسول الله ﷺ په موزو مسح کړي وه امامت يي وکړ ، نودمسح کوونکي دامامت په جواز کښي هيڅ شک نشته ( مظاهر حق ص ۴۶۴ ج ۱ طهور المسلمين ص ۳۷) .

**مسئله** : دتارونو او وړيو معمولي جرابی چي دمسح دجواز شرائط ونلري ، مسح ورباندي جواز نلري اودهغه شخص امامت صحيح نه دي ځکه جرابی دمسح شرائط نه لري او ده ورباندی مسح کړی ده ( فتاوی دارالعلوم ص ۲۷۰ دبحر الرائق په حواله ) .



## په عربانو کښي دموزو ډولونه

په عربانو کښي په جرابو باندي دڅرمني ګنډل دوه صورتونه لري :
اول : مجلد : داهغه صورت دي چي لاندي باندي تر بېږيو پوري څرمن ورکړي

دوهم : منعل : داهغه صورت دي چي يوازي په تلي (دلاندیني برخه)څرمن ورکړي دهمدي مروجو صورتو يا دونه دپخوانيو کسانو په کتابونو کښي شوي ده ، خو په عجمي هيوادونو لکه هند ، بخارا ، سمرقند ، اونورو کښي يو دريم ډول هم رواج دي ، هغه داچي جرابی ته لاندی باندی څرمن ورکوي خو داڅرمن تر بيږيو ( کعبين ) پوري نه وي ، همدا هم منعل دي (امداد المفتين ص ۱۹۸ ج ۱)

## په پنډو اونريو موزو مسح کول

دجوړښت دجنست په اعتبار جرابی دوه ډوله دي : ثخين او رقيق دثخين ( پنډی ) اصطلاح دفقهاوو په نزد دهغو جرابو لپاره استعماليږي چي دومره پنډي ويَ چي له بوټونو پرته دري ميله واټن تګ پکښي وکړای شي .
په پښه پسي پرته له تړلو يا پرته له تنميو دبوټ په څير ولاړه وي او اوبه ژر نه جذبوي .
لنډه داچي دثخين جرابو لپاره دري شرطونه اينښودل شوی دي : يوداچي لږ تر لږه دري ميله ( څلور کيلو متره او اته سوه شل متره ) لار به پکښي وهل کيدلای شي . داپه داسي حال کښي چي بله کومه جوړه ورباندي په پښو شوی نه وي .
دوهم داچي له پښي سره به پرته له تنګوالی اوپرته له تړلو ولاړه وي دريم داچي اوبه به تري نه تيريږي او ژر به يي جذب کولای نه شوای په کومو جرابو کښي

چي له دي شرطونه څخه يو هم کم وي هغه رقيقي ( نري ) جرابي دي ( فتاوی دارالعلوم له امدادالمفتين سره ص ۱۹۵ ج ۲ ، شرح منية اوشامي ) .
جرابي که وړيني وي که تاري همدا شرطونه ( دمسح لپاره ) ضروري دي که داشرائط پکښي نه وو هغه رقيقي دي ( شامي ص ۲۴۸ ج ۱ منية المصلى ص ۴۲ )

## په وړينو اوتاري موزو ( جرابو ) مسح کول

وړينو اوتاري موزو ته جرابي ويل کيږي که دهمداسي موزو ( جرابو ) دواړه لوری څرمن ولري ورته مجلدي وايي ، که يوازي دتلي لوري څرمن ولري ورته منعل وايي .

که موزي ټوله څرمن وي ،دتار اووړيو دخل پکښي نه وي بيا خفين بلل کيږي په خفينو ، مجلدو جرابو ، پنډو منعلينو جرابو په اتفاق سره مسح روا ده که جرابي مجلدي نه وي يا نري منعلي وي يعني دپنډو جرابو ( ثخين ) شرائط يي پوره نه وي نو په اتفاق سره وربانديي مسح جائز نه ده .

خو هغه جرابي چي پنډي وي مجلدي او منعلي نه وي ، په هغوی مسح کول اختلافي خبره ده .

پنډي ( ثخيني ) هغه جرابي دي چي دري شرطونه پکښي پوره وي :
اول : شفافي نه وي ، يعني که اوبه وربانديي واچولي شي پښو ته ونه رسيږي .
دوهم : پرته له استمساک متمسکي وي يعني له پښو سره پرته له تړلو ولاړي وي .
دريم : مشی ( تګ) پکښي ممکن وي يعني که په پښو شي پرته له بلې جوړي دري ميله تګ پکښي وشي .
که همدا دري شرطونه پوره وي بيا مسح وربانديي روا ده خودايادساتل پکار دي چي په موزو بانديي مسح کول په حقيقت کښي دعلت ( تنقيح المناط ) په



طريقه ده ، هغه جرابي چي پورته يادشوي شرطونه ولري هغه په خفينو ( موزو ) کښي داخلي دي چي دمسح دجواز حکم لري .

هغه روايتونه چي په جرابو دمسح کولو په هکله دي هغه ټول کمزوري دي يا لږ ترلږ د( خبر واحد ) په حکم کښي دي ، چي په هغوي بانديي په کتاب الله زياتوالی کيدلای نشي ، په هغوی بانديي دمسح جواز ومسح على الخفين په متواترو حديثونو کښي دتنقيح المناط ( علت ) په ډول ثابت دي ( درس ترمذی ص ۳۳۴ ج ۱ ) .
متواترو حديث هغه دي چي په هره طبقه کښي يي راويان تردوو ډير وي خو هغه بيا نه دي چي شمير يي دتواتر ترحدکم اويا ورته بديهي علم اليقين نه وي ( تحفة الدر ص ۱۱ ) .

## منعل موزی څه دي ؟

منعل دنون په سکون سره هغو جرابو ته ويل کيږي چي يوازی په تلی ( لاندينی برخه ) يي څرمن لګيدلی وي ، په پاسني برخه څرمن ونه لري ( درمختار ص ۴۰ ج ۳ )

## دموزودمنعل کيدلو مطلب

**مسئله** : دجرابو له منعل کيدلو څخه مطلب دادي چي په لانديني برخه يي څرمن لګيدلی وي اودمسح په غرض يي په شا هم تربيدړيو څرمن ولري ( فتاوی دارالعلوم ص ۲۷۵ ج ۱ ).

**مسئله** : په جرابو بانديي پرته له څرمني مسح جائز نه ده ، خوکه پنډي اومنعل وي اويا مجلد وي مسح وربانديي صحيح ده لکه دڅرمني په موزو چي صحيح ده ( فتاوی دارالعلوم ص ۲۷۲ ج ۱ دبحرالرائق ص ۱۹۲ ج ۱ په حواله ) .

Scanned with CamScanner

## په منعل جرابو باندي دمسح کولو حکم

**مسئله** : دمنعل شویو جرابو اندازه څومره ده دعامو جوړو په څیر لاندی باندی ورڅخه څرمن مراد ده که دهغی برخي وربانـدي نشـته کلکوالی هم دمسح کولو لپاره شرط دي ؟

**جواب** :هغه چي یوازی تلی ( لاندینی برخه ) څرمن ولري منعل بلل کیږي که څرمن په زیاته برخه لګیدلی وه خو ټربیدیو رسیدلي نه وه هغه هم دمنعل په حکم کښي دي ( طحطاوي ص ۱۴۰ ج ۱ ).
په منعل جرابو کښي که له څرمني وتلی ځای دومره پړړ ( پنډ ) وو چي دمسح دجواز شرطونه پکښي پوره نه وو دمسح دجواز په هکله متاخرین علماء پکښي اختلاف لري ، خودعدم جواز لوري داکثریت قول اواحوط ( ډیر احتیـاط ) کار دي ( احسن الفتاوی ص ۶۷۵ ج ۲ ).

**مسئله** : په عادي تاري جرابو په هیڅ صورت مسح کول جواز نلري ، کـه هغه ساده وي اوکه منعل ، که وربانـدي لاندی باندي څرمن وه هم مسح وربانـدي جواز نلري ، اما کـه څرمن وربانـدی ټربیدیو پوره وه بیـا مسح وربانـدي جواز لري ، هغه مجلدي بلل کیږي ( امداد المفتین ص ۲۰۱ ج ۱ ).

**مسئله** : په مجلدو جرابو مسح جائز ده ( عالمګیري ص ۶۳ ج ۱ امداد المفتي ص ۱۹۶ ج ۲ )

## مجلدي موزي

**مسئله** :هغه جرابي دي چي لاندي باندي ټولي په څرمن کښي پټي وي ، (یا پوره موزي دڅرمني وي ) ( فتاوی دارالعلوم ص ۲۷۲ ج ۱ ).



## په جرابو دپاسه دجرموقو حکم

**مسئله** : که څوک په نرمویا کلکو جرابو نوري جرابي په پښو کړي یا په جرابو دپاسه جرموقي وتړي ، جرموقي هم دجوړي په څیر دي خو دهغه جوړي ( بوټ ، څپلی ، کیپي ، موچتیي ، پاپوښ) دپاسه په پښو کیږي ترڅو جوړه له اوبو اوختو خوندي وساتي ، پـه دي صورتونو کښي کـه داشرائط ولـري نو مسح وربانـدي روا ده .
لومړي : هغه به دڅرمني وي یا به دومره پنډي وي چي اوبه تري تیري نشي .
دوهم : برسیري جرابي یا جرموقي به داسي وي چي یوازی په پښو شي تګ پکښي وشي .
دریم : همدا برسیرني جرابي به هم داوداسه په حال کښي په پښو شوی وي ( کتاب الفقه ص ۲۲۹ ج ۱ درمختار )

**مسئله** : که جرموقي پراخي او ازادي وي ، لاس یي تري کښته کـاوو او پـه موزو یي مسح کوله جواز نلري ( عالمګیري ص ۶۴ ج ۱ ، منیة المصلی ص ۴۰ ).

## دنایلون (لیلون) په موزو ( جرابو ) مسح کول

**پوښتنه** : ډیري کسان له عربو راغلی دي ، پوهنتون او پوهنځیو کښي زده کړي کوي هغوی دنایلون (لیلون) په جرابو مسح کوي ، وایي زمونږ بوټونه پاک دي نو ولي جرابي لري کړو ، ایا دنایلون په جرابو مسح روا ده ؟

**جواب** : په حدیثونو کښي راځي چي رسول الله ﷺ په خفینو مسح کړی ده ، دمحدثینو او فقهاؤ په نظر خفین هغه موزی دي چي له څرمنی څخه جوړې شوي وي نو که دڅرمني موزی ( یاجرابي ) وي پرته له کوم اختلاف څخه

Scanned with CamScanner

ورباندي مسح روا ده خو که دتاريا وړيو وي نو دمسح دجواز لپاره ورته
شرائط شته ، هغوی به کلکي وي اوکه يوازی په پښو شي دري ميله به پکښي
تګ کيدلای شي .
دوهم داچي له ترلو پرته به له پښو سره ولاړې وي يعني دغومره به پنډې
اوکلکي وي .
دريم : هغه به اوبه نه جذبوي داسي چي پښو ته ورسيږي که داسي جرابي وي
بيا که دتاروي که دوړيومسح ورباندي جائزه ده ، ځکه هغوی دځرمني دموزو
په حکم کښي راځي خودنايلون جرابي نه کلکي دي ، نه پکښي تګ کيدلای
شي اونه هم داوبو مخه نيولای شي ځکه هم دټولو په نزد په هغوی مسح کول
جواز نلري ( فتاوی قاضي خان ص ۲۵ ج ۱ ) .
يواځي دجرابو اوجوړي پاکوالی دمسح دجواز دليل کيدلای نشي ، دجرابو
پاکوالی په هرحال کښي ضرور دي ، هرو مرو ضرور لکه دجامو پاکوالی چي
ضرور دي ، له پاکوالی سره سره داسي جرابي ضرور دي چي ورباندي شرعاً
مسح جائز وي ،که پورته يادشوي شرائط پوره نه وي ، نو ورباندي مسح جائز
نه ده ، که ورباندي وشي اعتبار نلري. ( فتاوی رحيميه ص ۲۸۱ ج ۴ ، علم الفقه اونظام الفتاوی ).

**يادونه** : په عامو جرابو چي دمسح دجواز شرائط پکښي پوره نه وي ، مسح
جائز نه ده ، نو چي مسح جائز نه ده بيا که ورباندي وشي لمونځ هم نه کيږي
محمد رفعت قاسمي ) .

## دغلا اوغصب په موزو باندي مسح کول

**مسئله** : په داسي موزو چي په غلا يا بله ناروا لاره يي ترلاسه کړي وي مسح
جواز لري که څه هم په پښو کول يي ناروا دي ،خوداچي په ناروا لاره يي ترلاسه
کړي دادمسح له جواز سره منافي نه ده ، دذي مثال داسي دي لکه څوک چي



اوبه غلا کړي ، که څه هم غلا ناروا ده خو همدا اوبه داودس کولو لپاره پاکي
دي . دغلا اوغصب شيان که په عبادت کښي استعماليږي ، هغه هدف چي
پکښي تقرب الی الله دي نه ترلاسه کيږي ،اوسبب يي ښکاره دي .
( کتاب الفقه ص ۲۰۳ ج ۱ ) .

**مسئله** : که همداسي موزی په پښو شي مسح ورباندي صحيح ده خوپه پښو
کول يي ګناه ده ، هغه هم کبيره ګناه ،که ورباندي مسح وشي لمونځ يي
صحيح دی .
همداسي دهغي پښي مينځل په اتفاق سره په اودس کولو کښي ضرور ده کومه
چي په قصاص (سزا) کښي دغوڅولو وړ ده ، هغه مغصوبه پښه بلل کيږي وجه
يي داده چي په يوه جرم کښي يي دغوڅولو حکم شوي دي خوهغه شخص
وتښتي ګواکي هغه پښه يي په زور اوغصب سره خپله کړه داپښه په حقيقت
کښي دده نه ده خوترڅو چي دده په تصرف کښي ده دمينځلو حکم ورباندي
نافذدي ( درمختار ص۴۳ ج ۱ ) .

## په زړو موزو ( جرابو ) مسح کول

په داسي موزو مسح جواز لري چي پکښي دتللو امکان وي ، هغه جرابي (
مجلدي يا هغه چي دمسح دجواز شرائط يي پوره وي ) چي دزوړ والی له امله
پرته له جوړي پکښي تګ کيدلای نه شي مسح ورباندي جواز نلري (
امدادالاحکام ص ۳۹۳ ج ۱ دشامي په حواله ) .
په دې مسئله کښي علماء دوه ډلي دي ، يوه ډله وايي چي دمسح دوخت له
ختم سره سره مسح باقي ده خوبله ډله وايي مسح ختميږي خوبيا مسح
دجبيري حکم لري ( درمختار ص ۴۷ ج ۲ ).

## آیا په بوټونو مسح جواز لري ؟

**مسئله** : کوم بوټونه چې تربیـدیو پوري یي پښـي پوښتلې وي دموزو حکـ
لـري مسـح وربانـدي جـائز ده ، خـوداچې پـه ګرځیـدلو کښـي نـاولي کیـ
.هرلمانځه ته که یي کاږي مسح ماتیږي نو ګټه نلري ، ځکه په لـري کولو یـ
دمسح موده ختمیږي ( امداد الفتاوی ص ۸۰ ج ۱ طهورالمسلمین ص ۳۶ )

**مسئله** :دبوټ لاندینۍ برخه چې لـه ځمکي سره لګیږي ، نـاولي وي نومسـ
وربـاندي جواز نلري اوکه په لمانځه کښي په پښو وي نولمونځ نه صحیح کیـ
( فتاوی دارالعلوم ص ۲۸۴ ج ۱ دعالمګیري په حواله اودترمذي درس )

## په دستانو اوعمامي مسح کول

**مسئله** : په دستانونو ( دسماغوګان ، لاس پوښي ، دستکش ، دستکلـ
مسح کول جواز نلري ، همداشان په عمامه ( پګړي ، لنګوټه ، لونګۍ ) مسـ
کول ناجائز دي ( رکن دي ص ۲۶ بهشتي زیور دهدایه ص ۶۱ ج ۱ په حواله

**مسئله** :دلته ( په عمامه ،خولۍ ،ټادري اودستکلو کښي ) ستونزي نشته چـ
دمسح علی الخفین په نبوي حدیث ثابته ده اوخلاف القیاس ده نو په موز
باندي بل شي قیاس کولای نه شوای ( درمختار ص ۴۳ ج ۱ ) .

## په سړو سیمو کښي دمسح حکم

**مسئله** : کـه داسي سړه سیمه وه چې هلتـه دموزو په ایستـلو پښـو تـه زیـ
رسیده نو په داسي وخت کښي که دمسح وخت ختم هم وو ، مسح وربـاندي



جائز ده ، ځکه په داسي وخت کښي موزه دجبیري ( پټـي ) حکم لـري ( فتـاوی
دارالعلوم مع امداد المفتین ص ۲۱۱ ج ۲ ) .

**مسـئله** :کـه پـه موزو بـاندی دمسـح وخت ختم شـو خـو دسړي لا اودس وو
داشخص اختیـار لـري چـي موزي باسـي یـوازی پښـي مینځي اوکـه ټـول اودس
کـوي ، خوټـول اودس اولــی ( غـوره ) دي ( شـامي ص ۲۵۵ ج ۱ فتـاوی
دارالعلوم ص ۲۱۱ ) .

**مسئله** :که دموزی وخت داسي مهال ختم شو چې اوبـه دومره سړي وي چیکه
موزی وایستلي شي پښـي خرابیږي ( شلي کیږي ، یخ یي وهـي ) نوڅه به کوي ؟
په دي شبه کښي علماء دوه ډلي دي ، یوه ډله وایي چې دمسـح دوخت لـه ختم
سره سره مسح باقي ده ، خوبله ډله وایي مسح ختمیږي خوبیا مسـح دجبیـري
حکم لري ( درمختار ص ۴۷ ج ۲ ) .

## په مبطنو موزو مسح کول

که څوک موزو ( جرابو ) ته څرمن ورکوي نـو دوه ډولونـه خوبي منعـل اومجلد
کول دي ، دریم صـورت یـي دادي چې جرابي تـه ددننـه لـه خواڅرمن ورکړي .
ددي حکم هـم دمنعـل اومجلـدو جرابو ده ، کـه څرمن ټـولي جرابي تـه تربیـدو
ورکړل شوي وه مجلده ده کـنه منعله ده اوپه منعله جرابه مسح جواز نلري .

**مسئله** :که جرابي وړیني یا دنازکي څرمني وي بیایي منعـل کړي ، دمسح پـه
هکله یـي اختـلاف دي ، دمنیـة دشارح پـه نـزد راجـح ( غـوره ) جـواز ده خـو
داداحتیاط اوتقوی خلاف ده ( امداد المفتین ص ۲۰۲ ج ۱ ) .

Scanned with CamScanner

## دزربول موزو حکم

**مسئله** : په شام کښي دزربول په نوم یوډول موزي دي چي ددواړو بیډیو لوړو ته خلاصیږي ، بندونه لري ترېښو کولو وروسته بندیږي ، پرانستي خایونه یي بیرته بند شي ، په دي ډول موزو مسح کول جواز لري .
(درمختار ص ۳۴ ج ۳ ) .

**یادونه** : نن سبا دبندونو په ځای ځنځیر ( قلفک ) ورکوی په هغوی هم مسح صحیح ده .(شامي ص ۲۴۹ ج ۱ ) او .......

## درسول الله ﷺ خفین اونعلین(مبارك)

**پوښتنه** : په موزو باندي مسح کول مشروع دي ان داهل سنت والجماعت خانګړتیاده رسول الله ﷺ په پښو کړي دي اودرسول الله ﷺ دنعلینو ( پنهو ، پیزار ) شکل اوصورت هم دسیر په کتابونونو کښي راغلی دي څومره چي فکر کیږي په موزو باندي دپاسه نعلین پښو کول په قیاس کښي نه راځي خوپه ځینو کتابونو لکه : شرح سفر السعادات ، مدارج النبوت اوروضة الاحباب کښي دامر حکم لري ، که له جرابو سره یا پرته له جرابو په پښو شي مسح وربانديجواز لري اوکه نه ؟

**جواب** :په موزو باندي ترمسح وروسته داهم شرط دي چي هغوی دلمانځه لپاره پاکي وي یعني داسي ناولي نه وي چي دلمانځه مانع وي ، بیا داشرط نه ده چي له پنهو سره په پښو شي ، که یوازی موزي په پښو شي مسح وربانديروا او لمونځ یي صحیح دي .



له رسول الله ﷺ څخه هم داسي روایت شته چي په موزو دپاسه یي پنهي پښو کړي دي خو هغه همدا مشهوري پنهي نه دي کیدلای شي نوري یي وربانديپه پښو کړي دي داچي رسول الله ﷺ ورباندي مسح کړی ده اوس هم دمسح موانع نشته اوښکاره ده چي دموزو لپاره شرط داده چي ساتر القدمین مع الکعبین وي یعني پښي له بیډي سره پکښي پټي وي نو که کوم ډول بوټونه همداسي وي چي پښي اوبیډه یي پکښي پټي وي مسح وربانديجائز اولمونځ ورسره روا دي ( ردالمحتار باب المسح علی الخفین ) .

## آیا له رسول الله ﷺ څخه په جرابو مسح کول ثابت دي ؟

**پوښتنه** : یوازی په مروجه جرابو مسح کول جواز لري ؟ ماله یوه مولوي صاحب څخه داواوریدل چي له رسول الله ﷺ څخه په جرابو دمسح کولو روایت ثابت دي دباریکوالی اوفخا مت ( پنډوالی) قید پکښي نشته .

**جواب** : په جرابو مسح کول جواز نلري ، دمسح علی الجوربین لپاره څلور شرطونه شته ، دري هغه شرطونه دي چي په موزو ( خفین ) باندی دمسح دجواز لپاره ضروري وو ، په جرابو کښي یوشرط دمسح دجواز لپاره زیات دي په درالمختار کښي راځي ( اودمسح شرطونه دري دي : لومړي : داچي پښي له بیډیو سره پټي کړي . دوهم : په پښه کښي کومه برخه ورڅخه ( لوڅه ) پاته نه وي .
دریم : یو فرسخ یا زیات عادی تګ به پکښي کیدلای شي .
دجرابو لپاره بیا داچي دومره کلکي وي چي یو فرسخ پکښي تګ وکړای شي له ساق سره په خپله ولاړي وي ، لاندي تري څه ونه لیدل شي اوڅه شي تري لاندي تیر نشي ) ( درمختار علی الشامي ج ۱ ص ۱۷۹ ) . نو که همداڅلور شرطونه پوره وو مسح ورباندي جواز لري .

مولوي صاحب چي داوايي له رسول الله ﷺ څخه په جرابو مسح ثابته ده ، دابي علمي ده په حدیث شریف کښي دومره شته ( انه علیه الصلوة والسلام مسح علی خفیه ) ( جمع الفوائد ص ٤٢) . بل حدیث دي (ان النبی ﷺ مسح علی الجوربین ) ( جمع الفوائد ص ٤٢ ج ١ ) لنډه داچي په (خف اوجراب ) مسح کول ثابت دي خو مراد ورڅخه هغه موزی ( اوجرابي ) دي چي پورتني شرائط ولري ، یوازی درخت اوکپړي جرابي نه وي ( والله اعلم وعلمه اتم واحکم ) ( فتاوی دارالعلوم ص ۲۷۴ ج ۱ ) .

## موزی ( اوجرابي ) به څرنګه وي

**مسئله** : هغه موزی چي ایستل یي ضروري نه دي اومسح وربانديي جواز لري ، په هغوی کښي داڅلور خبري ضروري دي .

اول : دومره به کلکي وي چي پرته له بل څه اوتړلو په پښو پسي ولاړي وي .

دوهم : دومره کلکي وي چي دري میله ( ۴ کیلو متره او ۸۳۰ متر) فاصله پکښي وهل کیدلای شي .

دریم : پنډوالی یي دومره وي چي تري لاندي پښه څرګنده نشي .

څلورم: اوبه به نه جذبوي یعني که اوبه وربانديي واچولی شي لاندي به تري نه وځي کومي موزی ( اوجرابي) چي دأشرائط ولري که هغوی دڅرمني وي تار او وړیو یابل څه ، مسح وربانديي جواز لري ( مظاهر حق ص ۴۶۲ ج ۱ ) .

**مسئله** :عامه خبره داده چي دڅرمني پکښي شرط نه ده که په پنډتار یاکرمچ څخه وي چي پرته له تړلو په پښو پسي ولاړ وي اوکه پرته له بلي جوړی په پښو شي او دري میله پکښي تګ وشي ، په هغوی مسح روا ده .



**مسئله** :په کومو موزو چي مسح جواز لري که له دي سره ، سره چي کلکي وي ، تګ پکښي کیدلای شي داهم شرط دي چي پښي به یي تربیړیو پوښلي وي ،تربیړیو به کمي نه وي (طهور المسلمین ص ۳۴ ، احسن الفتاوی ص ۶۱ ) .

**مسئله** : په کومو موزو چي مسح جواز لری هغوی تربیړیو پوري پښي پوښلی وي بیړي هغه هډوکي دي چي دپښو په پورتنی برخه کښي راوتلی دي ، داځکه چي دپښو مینځل تربیړیو پوری لازم دي ، که خورا کمه برخه پاته شي اودس نه کیږي ، ( کتاب الفقه ص ۲۲۱ ج ۱ ) .

**یادونه** :موزی به تربیړیو کمي نه وي زیاتوالی یي حرج نه دي .
(رفعت قاسمي )

## دحلالي‌اوحرامي څرمنی موزی

**پوښتنه** : څرنګه راته معلومي شي چي داموزی دکوم حلال څاروي دي که دحرام ، اوکه په ټولو هغو موزو مسح جواز لري چي دهرڅاروي وي ؟

**جواب** :پوست (څرمن) په دباغت پاکیږي او داوسوسه په کار نه ده چي دڅه دول څرمني به موزی جوړي شوي وي ( ستاسومسائل ص ۶۶ ج ۲ ) .

## په پلاستکي موزو دپاسه جرابی

**پوښتنه** : که موزی له پلاستک څخه جوړی شوي وي سربیره وربانديي تاري جرابي پښو یي ایا مسح وربانديي جائز ده ؟

**جواب** : که له پلاستک سره جرابی وي ، مسح وربانديي صحیح ده ، دي ته [illegible] ۱۲۱ ) .

له ګنډلو پرته په جرابو مسح جواز نلري ځکه مسح په چرمي موزو جواز لري خویه جرابو مسح کول دموزو تحقق نه مومي ، دادمبطن په خلاف دي چي هلته تاري توږه اوڅرمن سره یو شوي دي ،ځکه په هغوی مسح جائز ده
( احسن الفتاوی ص ۶۶ ) .

## دشیشي یا اوسپني دموزو حکم

**مسئله** : هغه موزی چي له شیشي ، اوسپني یا لرګي څخه جوړي شوي وي مسح ورباندي جائز نه ده ، ځکه کومي موزي چي له دي شیانو جوړي شوي وي انسان پکښي بي تکلیفه تګ کولای نشي ( درمختار ص ۳۴ ج ۳ اوعالمګیری ) .

## څوک چي یوه پښه لري

**مسئله** : که دچا پښه غوڅه شوي وه ، که دپښي شاددریو ګوتو په اندازه پاته وه نو په موزو یي مسح جائزه ده اوکه دهمدي فرض په اندازه پاته نه وه بیا مسح ورباندي جواز نلري اومینځي به یي دلاندي لوري څخه ورباندي مسح نه کیږي خکه دمسح ځای پاته نه دي خومینځل کیږي ، ځکه ځای یي باقي پاته دي .

**مسئله** :که دچا یوه پښه وه بله یي یا دپیدایښت په وخت کښي نه وه یا تربیږدی پورته غوڅه شوي وه ، داشخص به په یوه موزه مسح کوي
( درمختار ص ۴۳ ج ۱ ) .



**مسئله** :که څوک ګوډ وو چي ګوتي یي نه وي خو نوره پښه وه مسح ورباندی جواز لری ، ترڅو پنده پاته وي مسح ورباندي کیږي ( درمختار ص ۶۸ ج ۱ )

**مسئله** :که دچا یوه پښه غوڅه شوي وي یوازی ددریو ګوتو په اندازه پاته وه ، مسح ورباندي صحیح ده خو که تر دي اندازه کمه پاته وه په موزو یي مسح جواز نلری ، که دچا یوه پښه تر بیږدیو پورته غوڅه شوي وه اوبله یي موزه په پښو کړي وه مسح ورباندي جائزه ده ( کتاب الفقه ص ۲۲۶ ج ۱ ) .

## ترموزو دلاندی جرابی

**مسئله** : که تاري یا وړیني جرابی چا په پښو کړي وي نري وي یا پنډي خو سربیره یي ورباندي موزی په پښو کړی وي مسح ورباندي جائزه ده .
( امداد الفتاوی ) .

**مسئله** : کومي جرابي چي نن سبا معمول دي که تاری ، وړیني ، یا نایلوني وي هیڅکله ورباندي مسح جواز نلری ، خو که دلاندی په پښو شي اوپری دپاسه دڅرمني یانوري موزی په پښو شي مسح ورباندی جائزه ده .
( فتاوی دارالعلوم ص ۲۶۷ ج ۱ ) .

## دموزو مینځل څرنګه دي ؟

**مسئله** : که چا موزی په پښو کړي وي مینځلي یي خو دمسح نیت یي نه وو کړي بیا هم مسح ورباندي کیږي که څه هم موزي ( چي په پښو وي ) مینځل مکروه دي (کتاب الفقه ص ۲۳۲ ج ۱ ) .

Scanned with CamScanner

**مسئله** :په موزو باندي دمسح کولو دجواز لپاره له نجاست څخه دموزو پاکول شرط نه دي ، که په موزه باندي ناولتیا ( نجاست ) وو هم مسح وربانديي روا ده .خوله نجاست سره لمونځ صحیح نه دي ( کتاب الفقه ص ۲۲۳ ج ۱ ) .

## دمقیم اومسافر لپاره دمسح موده

**مسئله** : که دموزی شرطونه پوره وو په حضر( کور ) کښي تریوي شپي او ورځي (۲۴ ساعته ) مسح جواز لري اودشرعي سفرپه حالت کښي تر دریو شپو ورځو ( ۷۲ ساعته ) پوري جواز لري ، دافرق نلری چي سفر دطاعت دي اوکه دمعصیت .

په موزه باندي دمسح موده ، دموزی له پښو کولو څخه نه شمیر له کیږی ، بلکي داودس له ماتیدلو وروسته موده شمیرله کیږي ، مثلا چاپه اوداسه باندي ماپښین ، موزي په پښو کړی خو مازدیگر یي اودس مات شو له همدی مازدیگر څخه به دمقیم لپاره ۲۴ ساعته اودمسافر لپاره ۷۲ ساعته موده شمیرله کیږی .

**مسئله** : غوره صورت دادي چي بشپړ اودس وشي ، موزي په پښو کړی بیا چي اودس مات شی اوبل اودس کوي مخ اولاسونه ومینځي اوپه موزو مسح وکړی ، تر ۲۴ ساعتونو که یي اودس کاوو همداسي به په موزو مسح کوي اوپښي به نه مینځي ، خو دمسح موده ، له پښو کولو اونه له مسح کولو بلکي داودس له ماتیدلو څخه شمیر له کیږي .

**مسئله** :داسي هم صحیح دي چي څوک لومړی پښي ومینځي اوبیا وړاندي تر داسي څه چي اودس ماتوی نور اودس بشپړ کړی ، جواز لری خو دترتیب



خلاف دي ، نو غوره صورت یي هغه دي چي وړاندی بیان شو ، یعني پوره اودس وکړی اوبیا موزی په پښو کړي داهم شرط نه ده چي له اودس کولو سره سم دستي دي موزي په پښو کړل بلکي تر اودس ماتیدلو وړاندی په پښو کول یي چي هروخت وغواړی صحیح دي .

**مسئله** :په موزو باندی هغه وخت مسح کول صحیح دي چي سړی اودس کوي خو که په چا باندي غسل لازم وو بیا مسح کافی نه ده ، موزي به کاږي ، که یي موده پوره وه اوکه نه وه (طهور المسلمین ص ۳۵ ، مظاهر حق ص ۴۶۶ ج ۱ ) .

## مسح دموزو په کوم ځای اوڅرنګه کیږي

شارع ﷺ دټولي موزی مسح کول دپښي دمینځلو په څیر ضروري بللی نه دي که څه هم په موزو مسح کول دپښو دمینځلو په ځای کیږي اودټولي پښي مینځل فرض دي خو مسح هغسي نه ده .

ددي سبب دادی چي په موزو باندی دمسح کولو یوخاص مراعات دي شارع ﷺ په دي هکله اساني جوړه کړي ده ، داچي په موزه باندي په څومره اندازه مسح کول فرض دي په اړه یي دامسئلي راځي .

**مسئله** :په موزو دپاسه ددري ګوتو په اندازه مسح کول فرض دي هغه هم دوړي ګوتي په اندازه ، شرط دادی چي مسح به دموزي په هغي برخه کیږي چیري چي پښه وي ، په دي مسئله کښي په موزو مسح کول دسر په مسح قیاس کیږي نوله هم دي برخی چي پښه پکښي وي بل ځای مسح نه کیږي لکه په پنده پسي نوره لګیدلی ټوټه ، مختني برخه یا یي په څنډو یا هم دلاندی له لوري ، مسح دپښو په پورتني برخه کیږی خو تربیدیو دلاندی هم جواز لري .

Scanned with CamScanner

**مسئله** : که دخرمني په موزو وينبتان وو اودمسح په وخت کښې اوبه خرمنی ته نه رسيدلی مسح جائزنه ده ، که يې په وينبتانو دمسح اراده وکړه اوخرمنی ته اوبه هم ورسيدلی بيا هم مسح صحيح نه ده ( کتاب الفقه ص ۲۲۸ ج ۱ ) .

**مسئله** :موزه به دپښې ددريو گوتو په اندازه شليدلې نه وي .

**مسئله** : مسح دلاس په گوتو کيږي که په يوه گوته مسح وشي جائز نه ده ، خکه په دې صورت کښې دااحتمال شته چې دمسح اندازه پوره نشي ، کيدلای شي په لومړی مسح گوته وچه شي ، خو که په يوه گوته دري ځايونه مسح وشي اوهرکله گوته لمده شي بيا جواز لري ، په لاس سره هم مسح ضروري نه ده ، که باران وو اودمسح په ځای اوبه وبهيدي هم مسح صحيح ده ( کتاب الفقه ص ۲۲۶ ج ۱ درمختار ص ۳۸ ج ۳ ) .

**مسئله** :په موزو باندی دمسح فرض اندازه داده چې دلاس ددريو گوتو په اندازه په هره موزه دموزو په پورتنی برخه مسح وشي غوره طريقه يې داده چې ددواړو لاسونه گوتي په اوبو لمدي شي اودموزو دگوتو په لوري کښيښودلی شي اوپورته لورته راکښ کړای شي گوتي به موټ نه وي اوسره پرانستي به وي

**مسئله** :که چا چپه مسح وکړه يعني دلاس گوتي يې دپښو دبيډيو له لوري دپښو دگوتو لورته کش کړی هم جواز لري خو دادسنت خلاف عمل دي ( طهور المسلمين ص ۳۵ ) .

**مسئله** :لومړی دي ددواړو لاسونو گوتي په غير مستعمل ( تازه ) اوبو لمدي کړی بيا دي دښي گوتي دښي پښې په گوتو برابر په موزه په غوړيدلی ډول



کښيږدي اودبيډيو په لور دي راکاږي اوبيا دي دکيڼ لاس گوتي په کيڼه پښه همداسي راتيري کړی .
دادمسح مسنونه طريقه ده خو که څوک يوه گوته دري ځلي په موزه باندی بيل بيل ځای اوهر ځل گوته په اوبو لمده کړی هم مسح جواز لري ، خوکه هرځل گوته لمده نه شي جائزه نه ده (مظاهر حق ص ۴۶۷) .

**مسئله** :که مسح په گوتو ونشي ، په ورغوي وشي يا په لامده لرگي ياجامه وشي هم جواز لري .

**مسئله** :که دباران يا نوري اوبه ياڅاڅکي ددريو گوتو په اندازه په دواړو موزو ولگيږي يا دشبنم په لمدوالی وانبه وربانده دمسح په اندازه کش کړای شي مسح کيږي ، که وانبه دباران په اوبو لوند وواو وربانده دمسح په څير تير شو هم مسح وشوه .

**مسئله** :که دموزو په لاندينی برخه يا له ښې اوکيڼ اړخه مسح وشي يا تر دريو گوتو په کمه اندازه مسح وشي جواز نلري .

**مسئله** :که چا گوتي وربانده ولاړي کښيښودلی اولاس دومره لوند وو چې ددريو گوتو په اندازه يې موزي لمدي کړي جائز ده ، که اوبه کمي وي يوازی ددريو گوتو دسرونو اثر پاته شو مسح ونه شوه ( طهور المسلمين ص ۳۶ ) .

**مسئله** :که په يوه موزه ددوو گوتو په اندازه اوپه بله موزه دپنځو گوتو په اندازه مسح وکړای شي جواز نلري .

**مسئله** : که دچا پښي زخم وي نه يې مينځلای شوای اونه يې مسح کولای شوای بل کس ته يې دمسح کولو جواز شته ( عالمگيری ص ۶۵ ج ۱ ) .

**مسئله** :که په بټه گوته او ورسره نژدې گوته مسح وشي . دواړي غوړيدلى وي مسح جواز لري . **مسئله** :که چا په موزو باندى دري گوتي کښيښودلى خو کش يې نه کړي جواز لري خو دسنت خلاف عمل دي .

**مسئله** :که يې دگوتو په سرونو مسح وکړه او اوبه ورڅخه څڅيدلى مسح جواز لري اوکه نه څڅيدلى وي جواز نلري .

**مسئله** : داندامونو په مينځلو چي کوم لمدوالى پاته کيږي مسح وربانديي صحيح ده که هغه څڅيدلى اوکه نه . خو که دسر ترمسح وروسته لمدوالى پاته وو په هغوى ( دموزو ) مسح جائزه نه ده.

**مسئله** :که په دواړو موزو په ساره مسح وشي جوازلري .

**مسئله** :که ورغوي کښيږدي يا گوتي کښيږدي اوکش يې کړى دواړه صورتونه صحيح دي ، خو غوره داده چي په تول لاس مسح وکړاى شي ، که دورغوى په شامسح وکړاى شي هم جائز ده .

**مسئله** :په مسح کښي ليکى (داوبو نښي ) شرط نه دي خومستحب دي .

**مسئله** :په مسح کښي څوځلي گوتي کشول سنت نه دي يوازى يوځل مسح کيږي داسي نه دي لکه په اوداسه کښي چي اندامونه دري ځلي مينځل کيږي . مسح يوځل ده .

**مسئله** :په موزو باندي دمسح کولو نيت شرط نه دي ( فتح القدير).



**مسئله**: که چا اودس وکړ ، مسح يې وکړه اوپه هغه کښي يې دښودلو نيت وو دپاکى نيت يې نه وو صحيح ده اومسح وشوه ( خلاصة ، فتاوى عالمگيرى ص ۶۶ ج ۱ ) .

**مسئله** :که موزه ارته وه ، که پاته پښه پکښي ښکاره کيدله دانقص نلري . خوکه موزه ارته وه اومسح په زائده برخه وشوه په دي صورت کښي مسح صحيح نه ده ،ځکه په هغه ځاى کښي پښه نشته ، خوکه يې هغه خالى برخه ته پښي ورسولى اومسح يې وکړه بيا صحيح ده .
که دموزى په خالى ځاى مسح وشوه ، بيرته دي راوگرځوي خويوقول دادى چي دمسح دراگرځولو اړتيا نشته ، ( درمختار ص ۳۴ ج ۳ ، عالمگيرى ص ۶۶ ج ۱ ) .

## په موزو باندي مسح څه وخت ناروا ده ؟

**مسئله** : که موزى تربيبډليو کښته وي مسح وربانديي جواز نلري .
(فتاواى دارالعلوم ص ۲۷۴ ج ۱ )

**مسئله** : که موزه دومره خيري شوى وي چي دتگ په مهال تر دريو گوتو زياته پښه ترى ښکاره کيږي مسح وربانديي جواز نلري .

**مسئله** :که يوه موزه دوه دري ځايونه بيل بيل سوري وي ، که هغه سورى سره يوځاى شي او ددريو په اندازه شي مسح وربانديي روانه ده .

**مسئله** :که په دواړو موزو کښي دومره سوري اوڅيري ځايونه نه وو چي که سره يوځاى شي ددريو گوتو په اندازه شي څه ستونزه نلري مسح وربانديي جائز ده .

Scanned with CamScanner

**مسئله** :که تردریوگوتو زیاته خیري وه خو دتگ په وخت کښي خرمن وربانديٍ راتله اوپښه تری د دریو گوتو په کمه اندازه ښکاره کیدله مسح وربانديٍ روا ده ( طهور المسلمین ص ۳۵ درمختار ص ۴۴ ج ۲ ) .

## په غبرگو موزو دمسح حکم

**مسئله** : که چاغبرگي موزی لاندی باندی په پښو کړی وي ، سربیره موزه اعتبار لری ، که هغه وایستله شي اودلاندي په پښو وي هم مسح ماتیږي اوپه لاندیني موزه بیامسح لازمیږي (شامي کراچي ص ۲۷۳ ج ۱ ) .

**مسئله** :که دلاندي تاري موزه (جرابه ) وه اوسربیره دځرمني موزه وه ، په سربیرنه موزه مسح کول کفایت کوي ( شامي ص ۳۷۳ ج ۱ عالمگیري ) .

**مسئله** : که سربیرنه موزه ددریو گوتو په اندازه سوزي وه مسح وربانديٍ جواز نلری ( بدائع ص ۱۱ ج ۱ ، درمختار ص ۴۰ ج ۱ ) .

## په موزو باندیمسح څه وخت باطلیږي ؟

**مسئله** : که دمسح په موده کښي موزه له پښي څخه وایستله شي دمسح وخت ختم اومسح باطلیږي .

**مسئله** :که په ناخاپي توگه پښه له موزی وخیژي اودپښي ډیره برخه په اوبولمده شي مسح باطلیږي ددواړو پښو مینځل ضروري دي که یوه پښه له موزی څخه ختلی وه که دواړه توپیرنلری که یي اودس وو یوازی پښي دي



ومینځي نوراودس دي نه تازه کوي غوره داده چي ټول اودس وکړي ، خو واجب اوضرور نه دي .

**مسئله** : که غسل واجبیږي بیا هم مسح باطلیږي .غسل کول اوپښي مینځل ضرور دي ( یعني په جنابت ، حیض اونفاس سره مسح باطلیږي ) .

**مسئله** :که چا په بي اودسي کښي موزی په پښو کړي ،بیا یي داودس کولو په وخت کښي پښي ونه مینځلي اومسح یي وربانديٍ وکړه باطل اوبي اعتباره ده ترڅو یي پښي مینځلي نه وي بي اودسه دي .

**مسئله** :څوک چي موزی په پښو کوي ، مسح وربانديٍ روا وي خوداودس کولو په وخت کښي دمسح کولو په ځای پښي ومینځي داجائز (بلکي غوره ) دي خوکه دلمانځه وخت تنگ وو اودموزو په ایستلو اودپښو په مینځلو یي لمونځ قضاکیده بیا ورته روانه ده ، نوراندامونه دي ومینځي اوپه موزو دي مسح وکړی .

**مسئله** :که اوبه کمي وي اودموزو په ایستلو وربانديٍ ټول اندامونه نه مینځل کیدل اوتیمم ته اړایستل کیده بیا دي په دي صورت کښي چي دمسح وخت یي پاته وي موزی نه باسي مسح دي وربانديٍ وکړي ، داغوره ده (طهور المسلمین ص ۳۷ کتاب الفقه ص ۲۳۲ ج ۱ ) .

**مسئله** :هرهغه شي مسح ماتوي کوم چي اودس ماتوي ، څکه مسح داوداسه خبره ده ، نوهغه څه چي دکل ناقض ( ماتوونکی ) دي دجز هم ماتوونکي دي ورسره دموزی ایستل که څه هم له یوي پښي وي اودمسح دوخت پوره کیدل مسح ماتوي ( درمختار ص ۴۶ج ۲ ) .

Scanned with CamScanner

**مسئله** :له شرعي موزی څخه دپښي دزیاتي برخي وتل یاقصدا ایستل دټولي موزي دایستلو حکم لري ، قاعده ده (للاکثر حکم الکل ) .
دپندي دبرني برخي وتلو او ننوتلو ته اعتبار نشته یعني که موزه پراخه وه اوډپندي برني برخه وته ننوته اعتبار نلري ( دپندي دبرني برخي مطلب تربیدېو دلاندی په پنده باندي برخه ده ) (درمختار ص ۴۷ ج ۲ ) .

**مسئله** :ددواړو یا یوي موزي په ایستلو اودمسح دمودي په ختمیدلو مسح ماتیږي ( هدایه ) خوداپه هغه صورت کښي چي اوبه موندل کیږي ، که اوبه نه وي مسح نه ماتیږي اوپه هغي مسح لمونځ کیږي ، ان که بیا هم اوبه نه موندل کیدی لمونځ دي پسي کوي ( عالمگیري ص ۶۸ ج ۱ ).

**مسئله** : که موزه دومره پراخه وه چي که گوتي تري ننوزي او مسح وکړی جواز نلري .

**مسئله** :که څوک دموزی په څنډه یا دشا (پندي ) له لوري یا تربیدېو له لوره لوري په موزو مسح وکړی جائز نه ده ( کتاب الفقه ص ۲۲۶ ج ۱ ).

## پرته له اودسه په موزو مسح کول

**پوښتنه** : که چا بي اودسه موزی په پښو کړي ، دلمانځه وخت راغي اودس يي وکړ او په موزو یي مسح وکړه لمونځ یي کیږي که نه ؟
په دي مسئله کښي دفقه په کتابونو کښي دطهارت لفظ راغي داپه اوداسه دلالت کوي که دبدن پاکي اویا دپښو ناولتیا ښني؟



**جواب** :که څوک اودس ونکړي ، پښي ونه مینځي مسحورباندي جواز نلری له طهارت څخه مقصد اودس دي دایوه اتفاقي خبره ده ( فتاوی دارالعلوم ص ۲۲۳ ج ۱ ) .

**مسئله** : دمسح لپاره داضروري ده چي موزي به په اوداسه په پښو شوي وي ( فتاوی درالعلوم ۲۶۸ ج ۱ ) .

**مسئله** :که په موزو باندي نجاست وو بیا هم ورباندي مسح صحیح ده خولمونځ ورسره صحیح نه ده ( کتاب الفقه ص ۲۲۳ ج۱) :

## که مقیم مسافر شو

**مسئله** : که مقیم وموزو ترپښو کولو وروسته چي دمسح موده يي لاپوره شوي نه وه اومسافر شو ، داورته جائز ده چي دمسافر دمسح موده پوره کړی یعني تر دریو ورځو اوشپو په موزو مسح وکړي.

**مسئله** :که مسافر دمسح دمودي ترپوره کیدلو وړاندی مقیم شو ، دمقیم دمسح ترمودي ورته مسح کول جواز لري ، مثلا که چا سهار اودس وکړ موزي یې په پښو کړی مازیگر کور ته راغی نو یوه شپه او ورځ به پوره کوي ( مظاهر حق ص ۴۲۹ ج۱ ) .

**مسئله** :که مقیم دمسح دمودي ترپوره کولو وروسته مسافر شو ، موزي دي وباسي اودس دي وکړی اوکه مسافر دمقیم دمسح تر مودي وروسته کورته راغی موزي دي وکاږي

Scanned with CamScanner

پوره نه وه هغه دي بشپړه کړي ، داځکه هغه اوس دمقيم حکم لري ( درمختار ص ۳۸ ج ۳ ) .

**مسئله** :دموزو شخص که داودس کولو په وخت کښي عذر نه وو اوموزي يي په پښو کړي نو دروغو کسانو په څير يي ترمعلومي مودي ورته مسح جواز لري

که داودس کولو په وخت يادبوي موزي دپښو کولو په وخت کښي ورته عذر پيداشو نودلمانځه په وخت کښي ورته مسح صحيح ده ، دوخت تر تيريدلو وروسته جواز نلري ( فتاوى عالمگيري ص ۶۷ ج ۲ ) .

**مسئله** :که يوي موزي ته اوبه ورسيږي اوتوله پښه لمده کړي په دي صورت کښي مسح ماتيږي موزی به باسي اوپښي به مينځي ( رکن دين ص ۲۶ او ...)

**مسئله** :که چا اودس وکړ اوپه ګوتو لمدوالي پاته وو په هغوی يي دموزو مسح وکړه جواز لری خوکه يي دسر مسح وکړه اودګوتو په پاته لمدوالی يي په موزو مسح وکړه جواز لری خوکه يي دسر مسح وکړه اودګوتو په پاته لمدوالی يي په موزو مسح وکړه جواز نلری ( منية المصلى ص ۴۱ ) .

## په موزو باندی دچامسح صحيح ده ؟

اول : داودس کوونکی مسح صحيح ده که هغه سړی وي که ميرمن ، مقيم وي که مسافر ، په دي شرط چي ټول شرائط يي پوره وي .

دوهم : دغسل کوونکو مسح صحيح نه ده ، که غسل فرض وي اوکه سنت ، په سنت غسل کښي هم پښي لمديږي نومسح نه پاته کيږي .



بوصورت دادي چي په سنت غسل کښي ، دغسل په وخت پښي لوړځای کښيږدي اودي کښيني له پښو پرته نور بدن ومينځي اوپه موزو مسح وکړي (درمختار) .

دريم : څوک چي تيمم وهي په موزو ورته مسح جائز نه ده . څلورم : که کوم عذر نه وو دمقيم لپاره ترحدث (دبی اودسی) ، وروسته يوه شپه اوورځ اودمسافر لپاره تر دريو شپو ورځو مسح جواز لري ( علم الفقه ص ۷۷ ج ۱ ) .

## په موزو باندي دمسح دجواز شرائط

اول : په هغو موزو مسح کول جواز لري چي که په پښو شی دپښو هغه برخه پټه کړي کومه چي په اوداسه کښي يي مينځل فرض دي يعني تربيلږيو پوري ، که موزی ددريو وړوګوتو تراندازی پوري سوري اوخيري وي څه مشکل نه جوړوي

دوهم : موزی به دومره زړی نه وي چي دمسح مانع وګرزي . دريم : موزی به له پښو سره لګيدلی وي دومره به غټي نه وي ، چي له پښي څخه يي کومه برخه خالي وي ، که دغومره غټي وي بيا دي په هغه ځای مسح کيږي چي هلته پښه وي .

څلورم : دموزو څلور شرطونه به يي پوره وي يعني :

الف : دومره به پنډي وي چي پرته له تړلو په پښو پسي ولاړی وي .

با : دومره به کلکي وي چي دري ميله تګ پکښي وشي .

ج : دومره به پنډي وي چي تري لاندي پښه ښکاره نشي .

د: اوبه به نه تري تيريږي .

ه : دحدث بي اودسي ، وراندی به په بشپړ اودس پښو شوي وي که څه هم دپښو کولو په وخت کښي داودس پوره نه وي يعني که څوک لومړی پښي ومينځي موزی په پښو کړی بيا اودس جواز لري ، دايي هغه حالت دي چي

Scanned with CamScanner

دموزو دپښو کولو په وخت کښې اودس بشپړ نه دي ، اوبیا مسح ورباندې کولای شي ( علم الفقه ص ۷۴ ج ۱ ) .

**مسئله** :دموزو دمسح دجواز لپاره داشرط نه دي چي په پوره اوداسه په پښو شي ، که څوک پښې ومينځي ، موزې پښو کړي بیا داودس دماتیدلو تر سبب وړاندې اودس وکړي ، صحیح دي ، خوشرط دادي چي اودس به په اوبو کوي ( تیمم به نه وهي ) ټول اندامونه چي فرض دي ومينځل شي اودسرمسح پاته نشي ( کتاب الفقه ص ۲۲۳ ج ۱ ) .

## دمسح فرضونه

۱ **مسئله** : مسح دموزو په برسيرنه سطح کيږي چي دپښې دشالورې دي .

۲ **مسئله** : موزې به دګوتو له لورې دبيډيو لورته ددريو ورو ګوتو په اندازه مسح کيږي ، که لاسونه لامده وي، که بل څه لوند شي ورباندې تیرشي یادباران په اوبو هرومرو لوندوالي ورته ورسیږي ،جواز لري اوهمدامسح بلل کیږي .

**مسئله** :دادشخص اختیار دي چي په دواړو موزو یوځای مسح کوي او یا لومړي په یوه اوبیا په بله موزه مسح کوي ، دايي هم اختیار دي چي په کومه یوه وغواړي په هغې يي وکړي ( علم الفقه ص۷۸ ج ۱ ) .

## دمسح سنتونه اومستحبات

۱ : په لاس مسح کول ۲ : دمسح کولو په وخت دګوتو پرانستل ۳ : ګوتي په موزو ایښودل اوبیا داسي راکاږل چي دلمدوالي نښي تري پاته شي ، ۴ : مسح دپښو دګوتو لـه لورې پيل کول اودبيډيو لورتـه کشول. ۵ : مسح لـه ګوتو



تربيډيو کول . ۶ : په دواړو موزو يوځای مسح کول ۷ : په ښي لاس ، ښي موزه اوپه کيڼ لاس کينه موزه مسح کول ۸ : دلاس دروغوي په لور مسح کول نه دګوتو په شا .

## دمسح مسنونه اومستحبه طريقه

**مسئله** : ددواړو لاسونو ګوتې په غیر مستعملو اوبو لمدول دښي لاس ګوتي غوړول اوپه ښي موزه ایښودل دکيڼ لاس ګوتې په کينه موزه ایښودل اوبیا له ګوتو دبیډیو لورته راکاږل چي په موزو باندي دلمدوالي نښي پاته شي .

**مسئله** : مسح په سربيرنه برخه کيږي نه دتلې په لوري ( علم الفقه ص ۷۸ ج ۱ ) .

## مسح څه وخت واجب ده ؟

۱ **مسئله** : کـه لـه چا سره دومره اوبـه وي چي لـه پښـو پرتـه نوراندامونـه ورباندې مينځل کيدل نو په موزو باندې مسح واجب ده .

۲ **مسئله** :کـه څوک پـه خوف (ويره) کښې وو اودپښو پـه مينځلو وربانـدې وخت تيريده يا که دموزو په کښلو اودپښو په مينځلو دعرفات دريدل ورڅخه تيريدل ، ورباندې واجب ده چي موزې ونه باسي او ورباندې مسح وکړي .

۳ **مسئله** :که دموزې نه کولو په صورت کښـې ورباندې دخارجي یا رافضي اټکل کيده ورباندې واجب ده چي په موزو مسح وکړي .

۴ **مسئله** :دموزوله ایستلو پرته دپښو مینځل ګناه ده ( علم الفقه ص ۷۷ ج ۱ ) .

Scanned with CamScanner

## هغه شيان چي ورباندی مسح صحيح نه ده

۱ : هغه موزی چي شرائط يي پوره نه وي ، مثلا داسي موزی چي دپښي ټوله هغه برخه يي نه وي پوښلي کومه چي مينځل يي فرض دي ، ددريو ګوتو په اندازه پښه تری ښکاري ، يا دومره زړی وي چي دمسح مانع وي يا يي مخته يادشوی څلور شرطونه ، نه وي پوره ، يا په بشپړ اودس په پښو شوی نه وي مثلا تيمم يي وهلی وي .

نن چي کومي تاري ، وړيني ياناَلوني موزی ( جرابي ) معمول دي ، په هغوی مسح نه کيږي ځکه هغوی دمسح شرائط پوره نلری ، همداسي دفلز ، ښيښي يا لرګي په موزو مسح نه کيږي ،ځکه په هغوی کښي تګ ستونزمن وي ( علم الفقه ص ۷۵ ج ۱ ) .

۲ : که دوه جوړی موزی ( جرابی ) په پښو شوي وي په لاندينيو مسح کيږي په پورتنيو روانه ده . ۳:که دلاندی داسي موزی ( جرابي ) په پښو شي چي دمسح شرائط يي پوره وي اوسربيره وربانـدي داسي موزی په پښو شي چي شرائط يي پوره نه وي نو په پورتنيو موزو مسح جائز نه ده .

۴ : که دموزو دمسح موده ختميږي دپښو له مينځلو پرته بيا وربانـدي مسح جائزه نه ده .

۵ : که دستکشونه (لاس پوښي ) په لاس وي دلاس په عوض مسح وربانـدی جايز نه ده .

۶ : دسر په بدل په عمامه (پګړی) مسح جواز نلری .



۷ : که غبرګي موزی ( جرابی ) په پښو شوي وي پورتني دمسح شرائط ولري نوبيا لاس تري دننه کول اوپه لاندينيو مسح کول جواز نلری ، که هغه شرائط پوره لري اوکه نه .

۸ :که تاري موزی (جرابی ) په پښو وي خوشرائط يي برابر نه وو او وربانـدي دومره څرمن يي ورکړه چي يوازی په لاندينی برخه کښي په ځمکه لګيدلـه بيا هم وربانـدی مسح جواز نلری ( علم الفقه ص ۷۶ ج ۱ ) .

## هغه شيان چي مسح وربانـدي صحيح ده

۱ : په موزو بانـدي مسح جواز لـری پـه دي شرط چي دمسح شرايط پکښـي پوره وي که هغه دڅرمني وي دتاروي اوکه دبل شي خو شرائط پوره کيـدل يي ضروري دي .

۲ :په بوټونو بانـدي مسح کول جائز دي خو په دي شرط چي پښي يي لـه بيـډيو سره پوښلي وي اوداسي تړل شوی وي چي پښه دومره تری ښکاره نشي چي دمسح مانع وي .

۳ : که په موزو (جرابو ) دپاسه نوري په پښو شي په برنيو مسح کول جواز لـري خو چي دمسح شرائط يي پوره وي ، که دلاندنيو دمسح شرائط پوره وي اوکه نه وي خو چي سربيرنی په اودس پښو شوی وي .

۴ :که دلاندی داسي موزی ( جرابی ) په پښو شي چي دمسح دجواز شرائط يي پوره وي اوسربيره داسـي چي شرائط پکښـي پوره نـه وي ، پـه برسيرنو مسح صحيح ده خو چي دومره نری وي چي اوبه تري تيريدلای شي ، په اصل کښي دامسح په لاندينو بانـدی ده .

Scanned with CamScanner

۵ : که موزی دومره وړی وي چي بيدی پکښي نه پټيدلی اوبله ټوټه يې وربانديوګنډله ، مسح ورباندی جائزده .

۶ : په زخم باندي په پټۍ مسح کول هغه دري صورتونه لری چي دمعذور په اودس کښي بيانيږي خو دموزو اودپټۍ دمسح ترمينځ توپير دادي چي په موزو مسح کول ددريو ګوتو په اندازه کيږي خو دپټي يا پلستر په ټوله سطخه يا يې په ډيره برخه کيږي .

## دمسح دباطليدلو صورتونه

۱ : په کوموشيانو چي اودس ماتيږي په هغوي مسح هم ماتيږي بيا مسح کولو ته اړتيا پيښيږي . دمعذور شخص چي دوخت په تيريدلو اودس ماتيږي مسح يې هم ماتيږي ، معذور به هم پښي مينځي بيا به موزی په پښو کوي .

۲ : که موزه له پښي وخيژي اويا دپښي ډيره برخه له موزی وخيژي که هغه قصدا وي اوکه بي ارادي ، مسح باطليږي موزی به کاږی اوپښي به مينځي .

۳ : که موزه داسي څيري شي چي که تر بيدی لاندی وي اودتګ په وخت کښي دپښي هغه برخه ډيره تري ښکاره کيدله يا دګوتو خواته دومره څيری وه چي اندازه يي دريوګوتوته رسيدله ، يا دواړه ځايونه سوري وو چي دتګ په وخت کښي ددريو ګوتو په اندازه پښه تري څرګنديدله مسح باطليږي پښي به مينځي .

که موزه څو ځايه څيري وه خو هرځای تر دريو ګوتو کمه اندازه وه خوټول څيري ځايونه ددريو ګوتو اندازی ته رسيدل بيا هم مسح باطليږي خوشرط داده چي داڅيري ځايونه به په يوه موزه کښي وي ، که په دواړو کښي دومره څيری ځايونه وو چي ددريوګوتو اندازه يي پوره کوله بيا مسح نه باطليږي ، که خورا



واړه سوري په موزو کښي وو داسي چي پنډ تارونه نه تری تيريدل اعتبار نلری که څه هم ډير وي که موزی څيري وي خودتګ په وخت کښي ددريو ګوتو په اندازه پښه نه تری ښکاره کيدله مسح نه باطلوي ،که داڅيری ځای زيات هم وي خوشرط پکښي دپښي دڅرګندتيا اندازه ده .

۴ : که دپښي زياته برخه لمده شي په دي صورت کښي به موزی کاږي اوپښي به مينځي که دمسح موده تيره شوه ،موزی به باسي اوپښي به مينځي خوکه يخنی ډيره وه چي که موزی وباسي اوتودي اوبه نه وي ، پښو ته زيان رسيده بيا دي نورهٔ هم ورباندي مسح کوي اوهغه ترداسي وخته چي داويره يي لري شي خو دامسح دپټۍ دمسح په څير ده يعني په ټوله موزه به مسح کيږي معنی داچي په اکثره برخه به مسح کوي او موزه به دجبيري په ځای وي .

**يادونه** :که ديوي موزی مسح باطله شوه دبلی هم باطله ده ،داسي جواز نلری چي يوه پښه ومينځله شي اودبلی په موزه مسح وشي ، مثلا : يوه موزه دري ګوتی څيري شي دواړه به کاږي يايوه پښه لمده شوه دواړی به مينځي ( علم الفقه ص ۸۰ ج ۱ ) .

## که دچا پښي زخم وي

**مسئله** : که دچا يوه پښه زخم وه او په هغی يي پټۍ تړلی وه . اودس يي وکړ اوپه پټۍ يي مسح وکړه اويوه موزه يي په پښو کړه په دي صورت کښي په يوه موزه مسح کول جواز نلری خوکه يي په پټۍ مسح وکړه اودواړی موزی يي په پښو کړی بيا وربانديمسح جواز لری ( محيط السرخسي )

**مسئله** :که دچا په پښه زخم وو ، پښي يي ومينځلی اوموزی يي په پښو کړی ، اودس يي مات شو اوپه موزو يي مسح وکړه همداسي يي څولمونځونه وکړل

Scanned with CamScanner

بیا یي موزی وایستلی ،معلومه شوه چي زخم بهیدلی دي اووینه تری راغلی ده خومعلومه نه وه چي څه وخت بهیدلی ده ، که دزخم سر وچ وو او دي شخص موزی سهار په پښو کړی وي ، نوذسهار لمونځ به نه راګرځوي اونور په راګرځوي.

**مسئله** : که دزخم سر په وینو لوند وو بیا دي کوم لمونځ نه راګرځوي (محیط

**مسئله** : که چا په زخم پټي کښیښوده ، پټی لمده شوه اودالمدوالی یي بهر راووست اودس یي ماتیږي خوکه لمدوالی بهر راوتلی نه وو اودس نه ماتیږي ( فتاوی عالمګیري ) .

**مسئله** :که پټي غبرګه وه څه لمدوالی تری راووت اوله څه برخی راوتلی نه وو بیا هم اودس ماتیږي ( تاتارخانیه ، عالمګیري ص ۷۰ ج ۱ ) .

**مسئله** :که دچا په موزو بل شخص مسح وکړه جائز ده (محیط ، عالمګیري ص ۷۰ ج ۸).

## په یوه موزه مسح کول

**مسئله** : داجواز نلری چي په یوه پښه موزه په پښو کړی اومسح وربانديوکړی اوبله پښه ومینځی که یوه پښه ومینځي دبلی مینځل لازم دي ، خودادپټی خلاف دي که یولاس یاپښه جبیره ( پټی ،پلستر ) ولری هغه مسح کړی دبل لاس یا پښی مینځل جائز څه چي فرض اوضر وري دي .

**مسئله** : که څوک موزی په پښو کړي اومنظمة مسحه وربانديکوي په پاکی او طهارت کښي داسي دي لکه دصحیح اودس څښتن چي پښي یي مینځلی وي .



**مسئله** : که مسح کوونکي امام وو اومقتدي پښي مینځلی وي کوم حرج نشته او لمونځ یي بي شبهي صحیح دي (طهور المسلمین ص ۳۷ ) .

## دموزی دڅیری والی اندازه

**مسئله** : په موزه کښي یوه ضروري خبره داده چي هغه به ډیره څیري نه وي ، دډیرو الی اندازه یې دپښو ددریو وړو ګوتو اندازه ده اوداصحیح ده (هدایه).

**مسئله** :داهم چي ددریو ګوتو په اندازه څیري والی ښکاره وي ، که هغه څیري والی دموزي په بهرني یا کښتني خواکښي وي اویا دشالورته وي دمسح مانع ده ( محیط السرخسي ) .

**مسئله** :که په موزه کښي دساق ( تربیډی لوړ) څیري والی وي دمسح مانع نه ده (خلاصه ) .

**مسئله** :وړوګوتو ته هغه مهال اعتبار دي چي له ګوتو هاخوا کوم بل ځای څیری شي اوهغه ددریو وړو ګوتو اندازه وي ، که دبټي ګوتی اودغومره نوره اندازه څیری شی خو اندازه یي ددریو وړو ګوتو اندازه نه واوړی مسح وربانديکیږي .

**مسئله** :که دبټي ګوتی او دوو نورو ګوتو په اندازه موزه څیری شي مسح وربانديی نه کیږي ځکه اندازه یي تر دریو وړو ګوتو اوړي .

**مسئله** : که دچا ګوتی غوځي شوی وي دموزو دڅیری والی اندازه دبل چا دګوتو په اندازه اټکل کیږی ( جوهر نیره ) .

Scanned with CamScanner

**مسئله** : که په یوه موزه کښي بیل بیل سوْري وی هغه سره جمع کیږی خو که په دواړو موزو کښي سوری وي هغه نه سره جمع کیږي ، مثلا که په یوه موزه کښي دیوې اوپه بله کښي ددوو گوتو په اندازه سوری وي نه سره جمع کیږي اومسح ورباندی جائز ده .

**مسئله** :که په یوه موزه کښي یوه گوته سوری په وړاندینی برخه کښي وو ، دیوی گوتي په اندازه شاته اودیوي گوتی په اندازه اړخ ته وو مسح ورباندی نه کیږي ( محیط ) .

**مسئله** :که هغه سوری سره یوځای شي اودستني سپم غوندی شي یا ترهغه هم واړه وي اعتبار نلری.

**مسئله** :هغه سوری اعتبار لری چي پراخ وي دننه پښه تری څرگنده شي یا دحرکت په وخت کښي پښه تری ښکاری اوپه ولاړه کښي بند وي ، خو که دننه تری څه نه ښکاره کیدل هغه اعتبار نلری اومسح ورباندی جائزه ده .

**مسئله** :که موزه له پاسه څیري شوه خودلاندی یي دڅرمني یا رخت استر ورسره گنډل شوی وو بیا مسح ورباندی جواز لري ( تبین ) .

**مسئله** :که موزه ،دڅرمنی جرابی یا جاروق (یوډول موزی دي ) دپښو په پورتني برخه کښي پرانستل کیدلی ( خینځیري درلود ) خوپښه یي پټوله دهغوی حکم دبندو موزو په څیر دی ، خوکه یي ډیره برخه خلاصیدله دموزی دسوریو حکم لري ( فتاوی عالمگیری ص ۶۷ ج ۱ دزاهدی په حواله ) .



**مسئله** :دموزی څیری والی ، لاندی بَاندی یا اړخ ته اعتبار لري ، که موزی ستري وي اوتربیډیو لوړی څیري وي دمسح مانع نه ده ځکه شرط تربیډیو پوری ده .

## دمسح په هکله څومهمي مسئلي

**مسئله** : موزه که دپښو ددریو وړو گوتو په اندازه څیري اوسوری وه مسح ورباندی جواز نلری.

**مسئله** : په موزه کی که دومره واړه واړه ځایونه سوری وه چي هغه سره یوځای شي ددریو وړو گوتو اندازه یي پوره کوله مسح ورباندی ناجائزه ده خوکه داسوری په دواړو کښي وو یعنی په دواړو موزو کښي دومره شول چي دري گوتی کیدلی بیا مسح ورباندی جواز لري .

**مسئله** :په کومو شیانو چي اودس ماتیږي په هغوی مسح هم ماتیږي .

**مسئله** :که دمسح موده تیره شوه مسح باطلیږی خوکه هوا ډیره سړه وه بیانه باطلیږي ترهغه مسح کولای شی ترڅو یي ویره لیري کیږي .

**مسئله** :که دموزو دمسح موده پوره شوه خودشخص اودس وو پښي دي ومینځي نور اودس ضرور نه دي ( مظاهر حق ص ۴۶۹ ج ۱ ) .

**مسئله** :چاچي داودس په ځای تیمم وهلی وو هغه ته په موزو مسح صحیح نه ده .

Scanned with CamScanner

**مسئله** :چاته چي دموزو تر پښو کولو وړاندی یا وروسته جنابت ورسید دهغه لپاره په موزو مسح صحیح نه ده ، خو که یي دجنابت لپاره تیمم اودحدث لپاره اودس وکړ اوپښي يي ومينځلی بيا يي په موزو مسح جايزه ده . خو که يي اوبه وموندلی بيا ناپاکه دي اوغسل به کوي پښي به مينځي ( مضرات ) .

**مسئله** :که جنوب سړی غسل وکړ خودبدن يوه برخه يي ناپاکه پاته شوه ، موزی يي پښو کړی اوبيا يي هغه ځای ومينځه ، په موزو يي مسح روا ده .

**مسئله** :که په اودس کښي کوم ځای وچ تری پاته شو دهغه ترمينځلو وړاندی يي اودس مات شو په پښو شويو موزو يي مسح جائز نه ده ( عالمگيری ص ۶۶ ج ۱ ) .

**مسئله** :که يوه موزه وباسی يا په خپله وخيژی بله به هم کاږي اوپښي به مينځی .

**مسئله** :که دمسح موده پوره شوه باطليږي ، که يي اودس وو ، موزی دي وباسي پښي دي ومينځي او داودس کول ورته ضرور نه دي خو که اودس مات وو بيا دي ټول اودس هم وکړي .

**مسئله** :که ترمسح کولو وروسته موزی ته اوبه ورغلی ، پښه ترنيمه زياته لمده شوه دواړه موزی دي بيرته وباسي پښي دي ومينځي ټول اودس ضرور نه دي ( بهشتي زيور ص ۷۳ ج ۱ ) .

**مسئله** :که په چا باندی غسل واجب شو موزی دي وباسي غسل دي وکړي .



**مسئله** :که پرته له اودس څخه موزی په پښو شي مسح وربانديی جواز نلری ، که يي پوره اودس وکړ پښي يي ومينځلی او موزی يي په پښو کړي بيا وربانديی مسح جائزه ده .

## که په موزو باندی مسح هيره شوه

**مسئله** : که له چا څخه په موزو باندی مسح هيره شوه ، بيا باران وشو اوموزی يي ددريو ګوتو په اندازه لمدي کړی يا واښه دباران يا شبنم په اوبو لوند وو وربانديی تير کړ مسح يي وشوه ( رکن دين صفحه ۲۵ دعالمگيری په حواله ) .

**يادونه** :که مسح هيره شي اودس نه بشپړيږي اوچي اودس نيمګړی وي لمونځ نه کيږي ، همداسي که دمسح شرائط پوره نه وي مسح نه کيږي اوبيا لمونځ هم نه کيږي ( محمد رفعت قاسمي ) .

## دموزو په مسح کښي غولول مه کوی

په پښو باندی مسح کول ضروری دی اوس دکم عقل خاوند هم دافکر نه کوی چي دلته نو خاص په پښو باندی مسح جايز ده ، بلکی هرڅوک پوهيږی چي په موزو باندی دمسح کولو حکم دي ، ځکه چي دموزو دمسح يادونه وشی نو هغه وخت به وربانديی مسح کوي چي په پښو وي همدا په عام عرف کښي په پښو مسح بلل کيږی .

همداسي اصطلاح بل ځای هم وي ، مثلا په سر يي داسي ووهي چي مات شی دلته مطلب دانه دي چي په لوڅ سر يي ووهي له همداسي محاوري سره برابر

ډير احاديث راغلي دي چي رسول الله ﷺ په پښو مسح وکړه ، علي ؓ په پښو مسح وکړه .

يوه اهل تشيع په چالاکي سره يوه رساله ليکلي وه پکښي ليکلي يي وو چي مااداهل سنت والجماعت له معتبروکتابونو څخه په اوداسه کښي په پښو مسح کول ثابت کړي دي .

داامام احمد ، بخاري اومسلم روايتونه يي رانقل کړي وو په هغوی کښي يي درسول الله ﷺ علي ؓ او نورو صحابه وو داوداسه کيفيت رانقل کړي وو بيا يي ويلي وو چي رسول الله ﷺ په پښو مسح کوله .

بي خبره سني حضرات حيران شول ، دخپل مذهب معتبر کتابونو نومونه يي وليدل چي پکښي درسول الله ﷺ اوصحابه وو په پښو مسح کولو بيان يي پکښي وليد .

هغوی نه پوهيدل چي دلته دموزو دپښو کيدلو حالت يادشوی دي ( طهورالمسلمين ص ۳۸ ) .

**يادونه** :داپوهان نوبايد داسي هم پوه شي که موزي په صندوق يابل ځای ايښي وي ، په پښو نه وي نومسح وربانديکافي نه ده څکه په روايتونو کښي دپښو يادونه شوی نه ده يوازي موزي يادي شوي دي ( محمد رفعت ) .

**مسئله** :مسح علي الخفين له ډيرو صحابه وو څخه رانقل شوی دي څوپه تولو کښي علماوو دحضرت جرير (رض) روايت ته اهميت ورکړی دي .

جرير ؓ دمائدي په سورت کښي داودس کولو دآيت ترنزول وروسته مسلمان شوی وو چي مطلب پکښي دادی چي ددي ايت تر نزول وروسته رسول الله ﷺ په موزو باندي مسح کړي ده اوجرير (رض) ليدلي دي ، له همدی امله په دي روايت درواقضو ترديد کيږي چي مسح علي الخفين داوداسه په ايت سره منسوخ گني .



په هرحال په مسح علي الخفين باندی اجماع شوی ده ، له همدي امله په مسح علي الخفين باندی قائل کيدل داهل سنت والجماعت نښه ده ، بلکي نن سبا خوداهل سنت والجماعت شعار دي ( درس ترمذی ص ۳۲۹ ج ۱ دبحر په حواله ) .

**مسئله** :که کوم فلج معذور موزی پښو کړي وي او ورته دتيمم ضرورت شو داودس کولو ورسره څوک نه وو ، تودي اوبه نه وي نو له دي کبله يي تيمم واهه دموزو دايستلو ارتيا يي نشته .

په درمختار کښي دتيمم دجواز لپاره داعذر يادشوی دي : ( او لم يجد من يوضه فان وجد ولوباجر مثل وله ذالك لا يتيمم الخ ) ( فتاوی دارالعلوم بحواله الدر مختار ص ۲۱۵ ج اول باب التيمم ) .

## په پټی دمسح کولو دليل

**مسئله** : په جبيره (پټی ، پلستر اونور) باندی دمسح دجواز دليل دادي چي دعلي ؓ دلاس هډوکی داحد که دخيبر په جگړه کښي مات شوی وو ، رسول الله ﷺ علي ؓ ته په لاس باندی دپټی دمسح کولو حکم ورکړ .

**مسئله** :امام اعظم رحمه الله لومړی په جبيره باندی مسح واجب بلله خو وروسته يي دصاحبينو په خير دهغي په فرض بللو قايل شو ( درمختار ص ۴۸ ج ۳ ) .

## دجبيری تعريف

دفقهاوو په اصطلاح هغی پټی ته ويل کيږي چي دناروغ په کوم غړی باندی ترله شوی وي يا هغه دوا چي وربانـدی وهله شوی وي دبندولو لپاره يي داشرط نه ده چي هغه په لرگيو لښتو ترل شوی وي ( گواکي پلاستر اوبنداژ تول پکښي شامل دي ) .

Scanned with CamScanner

داهم شرط نه دي چي دپټي لپاره دغړی مات والی ضروري دي ، نه دپټي حکم هغه وخت لری چي هغه غړی ته ناروغی رسیدلی وي ، که هغه زخم وي ، ماتوالی وي یا دهډوکی درد وي.

لنډه داچي دفقهاوو په اصطلاح جبیره هغې پټی ته ویله کیږي چي دکوم مرض یازخم له امله په اندام تړله شوې وي یا دوا وربانـدی وهلـه شـوی وي نوکـه اوبه وربانـدی نشي استعمالولای وربانـدی مسح کول فرض دي .

نوکه مکلف انسان په داسي غړی چي په اودس یا غسل کښي یي مینځل فرض وي کومه پټی ( پلستریابل څه ) وتړی یا وربانـدی دوا ووهی اومینځل ورته زیان وي مسح وربانـدی فرض ده ، په داسي حال کښي دوا هم دپټي حکم لري .

که دوا ته مسح کول هم زیان رساوو سربیره دي وربانـدی پټی وتړی اومسح دي کړی ، که کوم ځای ته اوبه زیانمنی وي نو په هغه ځای مسح کول فرض دي .

که مسح هم ورته زیان رساوو پټی دي وربانـدی وپیچی اومسح دي کړی ( کتاب الفقه ص ۲۶۷ ج ۱ ) .

## په پټی اوپلستر دمسح مطلب

**مسئله** : که کوم ځای مات شوی وي یا زخمی وي په اصل کښي دهغه ځای مینځل لازم دي په ځای یي مسح کیږي خوکه مسح کولو هم ورته زیان رساوو نو دي وربانـدی پټی وتړی اومسح دي وربانـدی وکړي که په پټی باندی هم مسح ورته نقصان رساوو نو تری ساقطیږي یعنی نه یي مینځل لازم دي اونه هم مسح کول ( درمختار ص ۵۰ ج ۳ ) .

**مسئله** :دپټی په زیاته برخه مسح کول کافی دي دټولی ځای نیسي :



**مسئله** :په پټی باندی دمسح کولو نیت شرط نه دي .

**مسئله** :په پټی باندی مسح کول نه په ټوله پټی شرط دي اونه څو واره مسح کول ( درمختار ص ۵۱ ج ۳ ) :

**مسئله** :په مات شوی غړی لرگی ( یا پلستر یابل څه ) تړل ، دزخم پټی ( پلستر و بنډاژ ) داغ ، دوینی دکښلو ځای یا نور زخمی ځایونه مسح کول دهغوی دمینځلو حکم لری ( درمختار ص ۳۸ ج ۳ باب المسح علی الخفین )

## په پلستر باندی مسح صورتاً ده

یو په موزو باندی مسح ده ، هغه په حقیقت کښي مسح ده ، بل په جبیره (پټی ) مسح ده ، هغه صورتا مسح ده په حقیقت کښي هغه دمینځلو په حکم کښي دي ، په دي دوو مسحو کښي توپیر شته ، دجبیری مسح حکما مسح نه ده ، دامسح له مینځلو سره یوځای کیدلای شی ، که یوه پښه زخمي وه ، په هغی مسح کیږي اوبله مینځله کیږي ، داصورت صحیح دی ، خوداسي جواز نلری چي یوه موزه وباسي اوهغه پښه ومینځی او په بله مسح وکړی .....
( درمختارص ۴۹ ج ۳ ) .

## په زخم باندی دمسح شرطونه

**مسئله** : په ټوله پټی باندی مسح کول شرط نه دی ، په اکثر برخه باندی مسح کافی ده ، مثلا که زخم په ټول لاس باندي وي په هغه یي پټی ایښي وي که دهغی تر نیمی په زیاته برخه مسح وشی نوکافی ده .

که پټی تر خوږ ځای زیاته تړله شوی وي ، نو دوه صورته دی ، یا به دپټی پرانستل ورته زیانمن وي اویا به نه وي ، که یي زیان نه درلود نوپرانستل یي واجب دي اوکه تری لاندی برخه ضرر نه درلود مینځل یي ضرور دي که یي

مینځل خوږ ځای ته زیان رساوو نو په خوږمن ځای به مسح کوي او روغ ځای
به مینځي ، که مسح کولو بیا هم زیان درلود روغه برخه دي ومینځي .
که دپټی پرانستل خوږمن ځای ته زیان رساوو په پټی سربیره دي مسح کوي
،پټی دي نه پرانیزي که څه هم تری لاندي مینځل یامسح کول امکان ولري .
په همداسي حالت کښي په پټی په ډیره برخه مسح وشي کافي دي
( کتاب الفقه ص ۲۷۰ ج ۱ ) .

## آیا په خوږ ځای مسح کیږي که په ټول غړي ؟

**پوښتنه** : که دکوم غړی یوه برخه یا ټول زخم وو مثلا پښه ، نو په ټوله پښه
به مسح کیږی اوکه یوازی په هغې برخه چي خوږ ده ، که په ټوله پښه مسح
وشي لمونځ صحیح دي ؟ ځوک وايي چي مسح یوازی دپټی په برخه کیږی
نورمینځل کیږي .

**جواب** :په ټولو صورتو کښي مسح په هغی برخه کیږي کوم چي زخم وي او
روغه برخه مینځل کیږی ، خو که ډروغی برخي اوبه په خوږ ځای راتللی اوزیان
يي ورته رساوو بیا په ټوله حصه مسح کول صحیح دي ، که دروغی برخي
اوبونقصان نه رساوو نودهغه شخص خبره سمه ده ، خوږځای به مسح کوی
اوروغ ځای به مینځي ، که دپټی په منځ کښي کمه حصه لوڅه وه وربانډی
مسح دي کوی ، تر پټی لاندی که څه کمه برخه روغه وه مسح وربانډی
صحیح ده ، نوره عضو به مینځي ( فتاوی دارالعلوم ج ۱ ددرمختار په حواله )



## که په لاس ، پښو زخم وو مسح به څه ډول کوي ؟

**پوښتنه** : که په لاس اوپښه زخمونه وو او اوبو زیان رساوو مسح به څرنګه
کوی ؟ که پټی ترزخم زیاته وه یا غسل ته اړتیا وه څرنګه به یي کوي ؟

**جواب** :که په مینځلوکښي دزیان اندیښنه وه، مسح دي وکړی ، په مسح
کښي دي وربانډی لوند لاس تیر کړی .
لومړی خوداحکم دي چي که په زخم بانډی له پټی پرته مسح کول زیانمن نه وو
، مسح دي کړی که څه هم ځینی ځایونه يي مسح پاته شی ، که زخم ته لوند
لاس زیان رساوو په پټی دي مسح وکړی ، خواوشا که څه ځای پاته شی کوم
حرج پکښي نشته ، لاس دی په ټوله برخه تیروی که څه هم له ځینو برخو سره
اوبه نه لګیدلی ، همدامسح صحیح ده ، که پټی تر زخم زیاته وه اوټوله پټی
مسح شوه صحیح ده ،که دغسل اړتیا وه ، په زخم دي مسح وکړی او نور بدن
دي ومینځي ( فتاوی دارالعلوم ص ۲۹۷ ج ۱ در المختار په حواله ) .

**مسئله** :که په زخم یا پټی هم مسح نشوای کیدلای بیا تیمم صحیح دي (
فتاوی دارالعلوم ص ۲۴۶ ج ۱ ) .

## دزخم په مسح کولو کښي سړی اومیرمن سره برابر دي ؟

**مسئله** : په پټی بانډی دمسح او ورسره اړوند مسئلو کښي ، سړی ،
میرمنی ، ځوک چي بې اودسه وي یا غسل وربانډی لازم وي سره برابر دي ،
یعنی دامسئلي دټولو معذورانو لپاره دي .

Scanned with CamScanner

## په جبیره باندی دمسح کوونکی امامت

**مسئله** : د جبیری ( پټی ، پلستر ، دزخم کالی ) لپاره دمسح وخت مقرر شوی نه دي ځکه دامسح دمینځلو په ځای ده ، تردي چي په جبیره باندی دمسح کوونکی امامت دروغو کسانو لپاره صحیح دی اودعذر ښښتن نه دي ( درمختار ص ۵۰ ج ۳ ) (طهور المسلمین ،کتاب الفقه ) .

## دزخم دروغوالی په حالت کښی دمسح حکم

**مسئله** : که پټی دزخم دروغتیا له کبله ولویدله په خپله مسح باطلیږی اوکه زخم روغ نه وو اوپټی ولویدله بیا مسح نه باطلیږی . خو موزه که په هرډول له پښی وخیژي مسح باطلیږی ، که پټی په لمانځه کښی دروغوالی له امله ولویدله لمونځ به راګرځوی اوکه دپټی لویدل مضروو مسح نه باطلیږی.
( درمختار ص ۵۱ ج ۳)

**مسئله** : که ناروغ پټی بدله کړه یا برسیرنه پټی ولویدله په دوهمه پټی مسح کول واجب نه ده ، البته مستحب ده ( درمختار ص ۴۹ ج ۳ ) .

**مسئله** :که زخم روغ نه وو اوپټی ولویدله ، که په لمانځه کښی وه که بهر مسح یي نه باطلیږی.

**مسئله** : که په لمانځه کښی دزخم دروغوالی له امله پټی ولویدله او دوروستنی قعدی دتشهد دلوستلو تر اندازی وړاندی ولویدله لمونځ ونه شو ، په دي صورت کښی به دپټی ځای مینځي او لمونځ به دوهم ځلی کوی ،خوکه په وروستنی قعده کښی دتشهد دلوستلو تر اندازی کښیناستلو وروسته



ولویدله نو دامام اعظم ابوحنیفه رحمه الله رایه داده چی لمونځ یي ونشو خو صاحبین رحمها الله وایي چي لمونځ وشو ، ځکه دامهال لمونځ ختم شوی دي او پټی وروسته لویدلی ده ( کتاب الفقه ص ۲۷۲ ج ۱ عالمګیری ص ۶۹ ج ۱ ) .
خو په دي موضوع کښی فتوی دصاحبینو په قول ده . ( عالمګیری ص ۷۱ ج ۱ ) .

## په جبیره باندی دمسح لپاره اودس ضرور نه دي

**مسئله** : په جبیره ( پټی ، پلستر ) یا په زخم باندی په کومه توټه مسح کول دلاندینی برخی له مینځلو سره برابر دي ، دهغه بدل نه دي ، آن که په یوه پښه پټی وه هغه مسح کیږی اوبله پښه مینځل کیږی ، ددي مسح لپاره کومه موده معلومه نه ده اونه دافرق لری چي پټی په اودس تړلی شوی ده اوکه په بی اودسه حالت کښی .

**مسئله** :په کوچني اوستره بی اودسي کښی په جبیره ( پټی ، پلستر ) مسح کیدلای شي . ( کوچنی حدث بی اودسي اوله ستری بی اودسي څخه مطلب دغسل لازم والی دي ) .
په دي مسح کښی په اتفاقی خبره سره نیت شرط نه دي ( بحر الرائق ) .

**مسئله** : مسح یوځل کفایت کوي اوداصحیح ده ( محیط ) .

**مسئله** : پښی مینځل اومسح کول نه سره یوځای کیږی.
( کافی ، فتاوی عالمګیری ص ۶۹ ج ۱ )

Scanned with CamScanner

## په زخمی نوکانو مسح کول

**مسئله** : که نوک مات یا زخم وي او دوا ورباندي کښيښودل شی ، که هغه تري ليري کيږي نو زيانمن وي ، مسح دي ورباندي وکړی ، که مسح هم ورته زيان رساوو پري دي ايږدي دزخمی اندامونو په هکله هم که ممکن وو اوبه دي ورباندي وبهوي اوکه نه مسح دي کړی اوکه هغه هم زيان ورته رساوو پري دي ايږدي خو روغه برخه دي ومينځی .

**مسئله** :که دچا گوته زخم وه ، په هغی يي ملهم کښيښودل اوهغه تر زخم زياته برخه ونيوله داودس کولو په وخت کښي که په ټوله پټی مسح وکړی جائز ده ( عالمگيری )

**پوښتنه** :که چا په کوم خوږمن خای پلستر لگولی وي ، که يي په اودس يا غسل کښی واړوي کوم زيان نلری خو کومه دوا چي يي لگولی ده هغه دپلستر په اړولو ليري کيږی ، يا بيا پلستر نه مونډل کيږی يا يي بيه لوړه ده نو په داسي صورتونو کښی دهغه اندام مينځل ضروري دي اودبي لوړوالی کوم حد او اندازه لري ؟

**جواب** : ددرمختار دلومړی ټوک په ۲۶۰ مخ کښي راغلي چي که دپلستر خلاصول زخم ته زيان رساوو نو پرانستل يي ضروری نه دي ، ورباندی مسح کول کفايت کوی اوهغه پلستر دجبيری ( پټی ) حکم لری که يي ليری کول زيانمن نه وو ، قيمت يي هم لوړ نه وي خو تش لاسي وي بيا هم ورباندي مسح جواز لری . ( احسن الفتاوی ، عالمگيری ) .

## که پټی ترمسح وروسته واوښتله

**پوښتنه** : چا دزخم په پټی مسح وکړه اوهغه واوښتله ، بله پټی يي ورکړه ايا بيا مسح ورباندي کيږي ؟

**جواب** : دپټی په لويدلو سره مسح نه باطليږی خوکه زخم جوړ شوی وو نو مسح ماتيږي اودهغه خای مينځل ضروري دي ( احسن الفتاوی ص ۶۳ ج ۲ ) ردالمحتار په حواله ) .

**مسئله** :که سربيرنه پټی واوښتله په لاندينی باندی بيامسح ضروري نه ده خو مستحب ده ( تير ماخذ ) .

**پوښتنه** : که دچا په مخ باندی تپ وو ملهم يي ورباندي کښيښودل ورباندي توته يي ولگوله ، داودس کولو په وخت کښی به هغه توته ليری کوي اوکه به هغی مسح کوي ؟

**جواب** :که زخم ته اوبو زيان رساوو او دتوتی ليری کول تکليف وو نو هغه توته دي نه ليري کوي او ورباندی مسح دي وکړی ( احسن الفتاوی ص ۶۴ ج ۲ ) .

**مسئله** :دزخم په خای دي مسح کيږي که مسح هم زيان رساوو بيا معاف ده مسح دي هم نه کوي ( تير ماخذ ) .

## دپټو په زخم مسح کول

**مسئله** : که دچا نوک مات شوی وو ، دوا يي وربانـدی ولګوله یا په پټـه کښي زخم وو او دوا يي وربانـدی ووهله ، حکم يي دادي چي پـه اودس کښي هغه ځای ومینځی ، که داوبو بهیدل ورته زیان رساوو پـه هغه ځـای دي مسح کوي اوکـه هغـه هم زیانمنـه وه بیـا دي پریـږدي یعنی نـه دي مینځـی اونـه دي وربانـدی مسح کوي دواړه دشرعی عذر له امله ساقطیږي ( درمختار ص ۵۱ ج ۳ ) .

**یادونه** :که په زخم ځای لوند لاس تیرول زیان رساوو نو په پټـی دپاسـه دي مسح وکړی ( محمد رفعت ) .

## دسر درد په مهال مسح کول

**مسئله** : که دچا سر دومره درد کاوو چي داودس په مهال يي وربانـدی مسح کولای نه شوای اونه يي دغسل په وخت کښي مینځلای شوای ، هغه شخص دي داودس اوغسل پـه ځـای تیمم ووهـی ، همدا شـان دسر دمسح فرضیت ورڅخه ساقطیږي که په سرباندی پټی لګیدلی وه دسرمسح فرضیت ورڅخه ساقطیږي ، که په سر باندی پټی لګیدلی وه پر مسح کول لازم دي .

**مسئله** :همدا شان دسر مینځل هم ساقطیږی ، هغه دي مسح کړي ،که مسح هم زیان رساوو دواړه ساقطیږی ، ددي شخص حکم داسي کیږی لکه سر چي نه لري اودامسح داسي ساقطیږی لکه اصلا چي هغه عضو نه وي ( درمختار ص ۳۲ ج ۳ ) .

## په دانو باندی مسح کول

که دچا په مخ باندي دانی وي وینی او نوونه تري بهیدل ،داودس کولو په وخت کښي يي په مخ وینی بهیدلی نو په داسي حالت کښي بـه هروخت تیمم وهي اولمونځ به کوي ؟

**جواب** :که رښتیا هم تکلیف دومره ډیر وو چي نـه وربانـدی اوبه بهیـدلای شوای او نه يي مسح وربانـدي کولای شوای تیمم دي وهي ( ستاسو مسائل ص ۶۵ ج ۲ ) .

**مسئله** :کـه پـه دواړو لاسونو دانـی وي اوهغـوی تـه اوبـو زیـان رساوو نـو تیمم ورته صحیح دي ، که يي داودس کولو لپاره بـل چا مرسته کولـه نـو دتیمم پـه جواز کښی اختلاف دي غوره او احوطه خبره عدم جواز دي ( احسن الفتاوی ص ۵۶ ج ۲ ) .

## که په زخم پټی تړلی وه اوتري لاندي وينه وه

**پوښتنه** : له زخم څخه وینه بهیدله ، پټی يي وربانـدی ولګوله ، تري لاندی وینه راوتله خو ترپټی نه راوتله ، آیا په دي وینه اوذس ماتیږي ؟

**جواب** :که دومره وینه راتله چي نه بندیدله اوبهر راوتله اودس ماتوي (فتاوی رحیمیه ص ۲۶۹ ج ۴ ) .

## په پلستر باندي دمسح کولو مسئلی

۱ : که دکومي ناروغتیا له امله یوه حاذق ډاکټر دچا دکوم غړی لـه مینځلو ممانعت وکړ دهغه ځای مینځل فرض نه دي که مسح ورته زیانمنه نه وه مسح دي کړی اوکه هغی هم زیان درلود مسح هم ورته معاف ده .

Scanned with CamScanner

۲ : په اوداسه کښې چې دکومو غړو مینځل فرض دي که په هغوی کښې زخم وو یا درد یابل تکلیف وو ، که اوبه ورته زیانمني نه وي مینځل یې فرض دي اوکنه مسح دي وربانديي وکړي ، که مسح هم ورته نقص رساوو هغه دي هم نه کوي ( درمختار ) .

۳ :که لاسونه زخم وو یا وربانډې پټې لګیدلي وي اولاسونه یا یې په لاسونو نور اندامونه مینځلای نشوای تیمم دي وکړي ، که یې کولای شوای .

۴ :که دکومي ناروغتیا له امله چا په لاس ، پښو یا مخ باندې دوا وهلې وه ، که یې زیان نه رساوو نو مینځل یې فرض دي ،که هغه دوا ترمینځلو وروسته لیري شوه ، که دروغوالی له امله لیرې شوي وه ، نوره مسح وربانډې نه کیږي اوهغه ځای به مینځي .

۵ :که دچا لاسونه له څنګلو اوپښې له بیډیو سره غوڅې شوې وي په داسي حالت دلاس اوپښو مینځل وربانډې فرض نه دي که مخ هرڅرنګه مینځلای شي اودسر مسح کولای شي خو بنه کنه هغه هم فرض نه دي ، مخ دي دتیمم په نیت په دیوال یابل څه پسې ومښي .

۶ :که دچا لاس یاپښه غوڅه شوې وه ، څنګله یاڅه زیاته برخه یابیډې یاڅه زیاته برخه پاته وه مینځل یې لازم دي ځکه تر هغوی لاندې برخه اودهغوی مینځل فرض دي .

۷ :که لاسونه له څنګلو اوپښي له بیډیو سره غوڅې شوې وي ،مخ زخمي وو ، مینځل اویامسح یې ممکن نه وه ، په داسي صورت کښې اودس کول فرض نه دي .



۸ :که چا لـه څـه املـه دواړه غوړونـه یوځای مسح کولای نـه شوای ، یـا یې یولاس وو یا یې یولاس بیکاره وو ، هغه دي لومړی ښی اوبیا کیڼ غوږ مسح کړي .

۹ : پـه اودس کولـو کښـې چې کوم غـړی مینځل کیـږي ، کـه هغـه مـات وو ، زخمي یا وربانډې پټې تړله شوې وه ، هغه دري صورتونه لري :

**لومړی صورت** : دپټې خلاصول مضر وو ، اوبه که مضري وي اوکه نه وي ، په دې صورت کښې که په پټې مسح کول زیانمن نه وو ، په ټوله پټې به مسح کوي ، که هغه به زخم ځای ده اوکه په روغ ځای . که دزخم روغې برخې ته زیان رسیده ، هغه دي هم پریږدي .

**دوهم صورت** :دپټې خلاصول مضرنه وو ، خو تر پرانستلو وروسته یې نه په خپله تړلای شوای اونه بل څوک وو ، مسح دي کړي ،که مسح هم ضرر رساوو هغه هم ورته معاف ده .

**دریم صورت** :دپټې پرانستل مضر نه وو اوبیا یې تړلو هم ستونزه نه درلوده نوکه اوبو ورته زیان نه رساوو پټې دي پرانیزي او زخم دي ومینځي ،که زخم ته زیان رسیده هغه دي پریږدي نوره عضوه دي ومینځي ،که زخمي برخې ته مسح زیان نه رساوو مسح دي کړي اوکنه پټې دي وربانډې وي،که زخمي برخې ته مسح زیان نه رساوو مسح دي کړي اوکه نه پټې دي وربانډې وتړي بیادي مسح کړي که بیاهم ضرر رسیده هغه هم ورته معاف ده .

۱۰ : که پټې داسي تړله کېدله چې په مینځ کښې یې دجسم روغه برخه هم راتلله په ټوله پټې دي مسح وکړي ، داپه هغه صورت کښې چې که دپټې پرانستلو اودهغه ځای مینځلو زیان درلود .

Scanned with CamScanner

۱۱ :که دپټي دپاسه بله پټي تړله شوې وه ، په هغې هم مسح جائزه ده (علم الفقه ص ۶۴ ج ۱) .

## دموزو اوپلستر دمسح ترمينځ توپير

**مسئله** : که کومي داني يا زخم وي اوهغه يي مينځلاى نشواى يا يي مسح هم ورباندې کولاى نه شواى يعني همدغومره کمو اوبو هم ورباندې بده اغيزه کوله يا دپټي په ليرى کولو کښې تکليف ديريده نو په پټي اوپلستر مسح جايزه ده ، که څه هم تري لاندې ملهم ناپاکه وو په همدي مسح اودس کيږي خو دناپاکي له امله لمونځ نه کيږي .

**مسئله** : که ناپاکه ملهم ديوه درهم ( دري ماشي ) څخه زيات نه وو لمونځ هم ورسره کيږي (هداية) .

**مسئله** :که په سرو اوبومسح نقصان رساوو په تودو اوبو دي مسح وکړي ، که ددوو پټيو ترمينځ څه اندازه لوڅه پاته وه که يي مينځلو پټي ته تاوان رساوو هغه دي هم مسح کړي .

**مسئله** :که يي ترپټي لاندې په زخم مسح کولاى شواى خو په اړولو يي بيا بله پټي پيداکولاى نه شواى نو په پټي مسح صحيح ده .

په موزو باندې دري گوتې مسح صحيح ده ، خو په پټي باندې شرط داده چي په ټوله به مسح کوي ، يعني کوم ځاى چي نشي مينځلاى په هغه ټول به لوند لاس راکاږي .



**مسئله** :په پټي کښې داشرط نه ده چي په اوداسه باندې وتړله شي ،بلکې چي ضرورت پيښ شو تړله کيږي او داودس کولو په مهال ورباندې مسح کيږي ، په پټي هغه مهال مسح جايزه ده چي په زخم مسح کيدلاى نشي .

**مسئله** :که دزخم تر روغتيا وړاندې پټي ولويدله يا يي پرانستله مسح نه باطليږي لومړنى مسح کافي ده بيا مسح ضرور نه ده ( دادموزي خلاف ده ) .

**مسئله** : که لومړنى پټي بدله شي ، بله ورباندې وتړي بيا مسح ورباندې ضروري نه ده خومستحب ده چي بيا مسح شي .

**مسئله** : دزخم يا پټي دمسح لپاره کومه موده مقرره نه ده بلکې ترڅو ضرورت وي ترهغه دي ورباندې مسح کوي .

**مسئله** :داودس له ماتيدلو سره ، مسح هم باطليږي چي نور اودس کوي همدا مسح به هم ورسره کوي .

**مسئله** :که زخم روغ شي مسح هم باطيږي ، که يي اودس وو اوزخم روغ شو يوازى هغه ځاى مينځل کافي دي ، ټول اودس کول ضرور نه دي .

**مسئله** : لکه څرنگه چي په اوداسه کښې په زخمي ځاى مسح کول جائز دي همدابي په غسل کښي هم په زخم مسح کول روا دي . مثلا که په سر ، ملا يا مټ زخم وي په هغه دي مسح کوي اونور بدن دي مينځي ، که يي په زخم مسح کولاى نه شواى پټي دي ورباندې وتړي په هغې دي مسح وکړي ، دغسل په ځاى مسح هغه وخت باطليږي چې بيا غسل واجب شي اويا زخم روغ شي .

Scanned with CamScanner

**مسئله** :که ترنیم بدن زیات زخمي وو ، په زخمونو به مسح کوي دنور بدن مینځل ضرور نه دي ، تیمم ورته کافي دي ، که په پټۍ مسح کولو زیان درلود یا یې روغتیا ځنډوله بیا هم مسح معاف ده .

**مسئله** : ترڅو چې ضرورت وو خواوشادې مینځې اوډپلستر ځای دې پرېږدي

**مسئله** : که لاس یا پښه زخم شول ،موم ، وازگه ، واسلین یا بله دوا یې ورباندې ووهله ، که دهغې په لیرې کولو اومینځلو کښې تکلیف نه وو . هغه دې لیرې کړي ، هغه ځای دې ومینځې اوکه تکلیف وو په هغوی دپاسه دې اوبه تیرې کړي همدا کافي ده (طهور المسلمین ، فتاوی دارالعلوم اوعالمگیری ).

**یادونه** : په جبیره ( پټۍ ، پلستر یابل څه ) باندې مسح دموزو له مسح څلور توپیره لري :

اول : که پټۍ دروغتیا له امله ولویدله یوازې هغه ځای مینځل کیږي خو موزه که یوه هم وایستله شي ددواړو پښو مینځل ضروري دي .

دوهم : که پټۍ پرته دزخم له روغتیا څخه ولویدله بیا دې بنده شي دمسح اعاده ضرور نه ده .

دریم : دجبیرې دمسح دوخت حد معلوم نه دي .

څلورم : په زخم دپټۍ تړل په اوداسه سره شرط نه دي ، که پرته له اودس څخه وتړله شي مسح ورباندې صحیح ده ، اودس ورته شرط نه دي ( محمد رفعت )



## دمعذور دلمانځه طریقه

**مسئله** :دمعذور لپاره غوره طریقه داده چې دلمانځه لپاره ستوني ستخ پریوزي ، پښې قبلې ته کړي ، زنگونه ودروي ، سر څه اندازه لوړونیسي ترڅو یې مخ قبلې ته برابر شي .

دااختیار هم شته چې پر ښي یاکیڼ اړخ څملی اولمونځ وکړی ښي اړخ تر کیڼ اړخ غوره (افضل ) دي .

داټول صورتونه په هغه حال کښې دي چې ورباندې قادر وي ،که یې داسې کولای نشوای نو چې څرنگه ورته ممکن وي هغسې دې لمونځ وکړي ( کتاب الفقه ص ۸۰۳ ج ۱ ) .

**یادونه** :دیوه لمانځه فدیه پاوکم دوه کیلو گرامه غنم یا دهغوی بیه ده ، په یوه شپه او ورځ کښې له وترو سره دټولو لمونځونو فدیه لس نیم کیلو گرامه غنم یا یې بیه ده ( محمد رفعت قاسمي غفرله ) .

**دژباړې پای ۱۳۸۵\۵\۲۴ هـ ش** ( ریان)

اللهم اغفرلمؤلفه ولمترجمه ولکاتبه ولکل من سعی فیه امین ثم امین

Scanned with CamScanner

## دلاس ته راوړلو ځایونه

- په خپله مکتبه رشیدیه کویټه
- مکتبة العرفان کانسي روډ کویټه
- مکتبه محمدیه کانسي روډ کویټه
- مکتبه نورالقرآن پښتون اباد خدایداد چوک کویټه
- اسلامي کتاب گهر سټلائټ ټاؤن گول مسجد
- کلیم اسټیشنرز مسلم باغ
- مکتبه نشرالقرآن نعیم مارکیټ قلعه سیف الله
- مکتبه عبدالعزیز ژوب
- مکتبه شاه محمد ژوب
- جدید کتب خانه وانه
- الفریدي کتب خانه خانوزئي
- مکتبه محمودیه نزد ډاکټر نسیم کلینیک پښین
- مکتبه اسلامیه پښین
- مکتبه رشیدیه لورلائي
- مکتبه سراج الدین دکی
- طالب جنرل سټور دکی
- ضیاء القران کتب خانه بوغره روډ چمن
- مکتبه حقانیه بوغره روډ چمن
- اسلامي کتب خانه تاج میر روډ چمن
- مکتبه علوم اسلامیه تاج میر روډ چمن
- دارالاخلاص محله جنگي پیښور
- مکتبه غفاریه ارگ بازار قندهار
- مکتبه رشیدیه سنگین بازار هلمند